ننگرهار طب پوهنځی

# د درملو د استعمال عملي لارښود

د اساسی درملو د نسخي ليکلو لارښود کتاب

(پښتو / انګليسی)



سی ډی سره

ډاکتر مالټې ايل وان بلومرودر

١٣٩٢

د درملو د استعمال عملي لارښود
د اساسی درملو د نسخي ليکلو لارښود کتاب
(پښتو / انګليسی)

Practical Drug Guide
A handbook for the correct prescribing of essential drugs
(English / Pashto)

ډاکتر مالټې ايل وان بلومرودر

Nangarhar Medical Faculty

AFGHANIC

Dr. Malte L Von Blumroeder

# Practical Drug Guide

A handbook for the
correct prescribing of essential drugs

(English / Pashto)

Funded by
Kinderhilfe-Afghanistan

ISBN 978-0747595823 -3
9 780747 595823 >

With CD

IAM
INTERNATIONAL ASSISTANCE MISSION
Serving Afghans - Building Capacity, since 1966

2013

# د درملو د استعمال عملي لارښود

د اساسي درملو د نسخي ليکلو لارښود کتاب

(پښتو / انګليسی)

ډاکټر مالټې ايل وان بلومرودر

AFGHANIC



ننگرهار طب پوهنځی

Pashto PDF
2013

Funded by
Kinderhilfe-Afghanistan

# Practical Drug Guide

A handbook for the
correct prescribing of essential drugs

(English / Pashto)

Dr. Malte L Von Blumroeder

# د درملو د استعمال عملي لارښود

(پښتو / انګلیسی)

ډاکتر مالټې ایل وان بلومرودر

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | د درملو د استعمال عملي لارښود (پښتو/ انګلیسی) |
| لیکوال | ډاکتر مالټې ایل وان بلومرودر |
| بریښنالیک | iam.med.books@gmx.net |
| ژباړن | ډاکتر محمد فرید بزګر |
| خپرندوی | ننګرهار طب پوهنځی |
| ویب پاڼه | www.nu.edu.af |
| چاپ شمېر | ۱۰۰۰ |
| لومړنۍ چاپ | ۲۰۰۰ کال د نړیوال مرستندویه ماموریت (IAM) لخوا |
| دوهم چاپ | ۱۳۹۲ |
| ډاونلوډ | www.ecampus-afghanistan.org |
| چاپ ځای | افغانستان ټایمز مطبعه، کابل |

دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې په جرمني کې د Eroes کورنۍ یوی خیریه ټولنې لخوا تمویل شوی دی.
اداری او تخنیکی چارې یې په آلمان کې د افغانیک موسسی لخوا ترسره شوې دي.
د کتاب د محتوا او لیکنې مسؤلیت د کتاب په لیکوال پورې اړه لري او دوهم چاپ یې د اړوندې پوهنځې لخوا تر سره شوی او مسؤلیت یې په غاړه لري. مرسته کوونکي او تطبیق کوونکي ټولنې په دې اړه مسؤلیت نه لري.



د تدریسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړیکه ونیسئ:
ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت، کابل
تیلیفون: ۰۷۵٦۰۱٤٦٤۰
ایمیل: textbooks@afghanic.org





ای اس بي ان ۳ – ۹۱ – ۹۰۵۷۳۲ – ۱ - ۹۷۸

# د لوړو زده کړو وزارت

# پیغام

د بشر د تاریخ په مختلفو دورو کې کتاب د علم او پوهې په لاسته راوړلو کې ډیر مهم رول لوبولی دی او د درسي نصاب اساسي برخه جوړوي چې د زده کړې د کیفیت په لوړولو کې مهم ارزښت لري. له همدې امله د نړیوالو پیژندل شویو ستندردونو، معیارونو او د ټولنې د اړتیاوو په نظر کې نیولو سره باید نوي درسي مواد او کتابونه د محصلینو لپاره برابر او چاپ شي.

د لوړو زده کړو د مؤسسو د ښاغلو استادانو څخه د زړه له کومي مننه کوم چې ډېر زیار یې ایستلی او د کلونو په اوږدو کې یې په خپلو اړوندو څانګو کې درسی کتابونه تألیف او ژباړلي دي. له نورو ښاغلو استادانو او پوهانو څخه هم په درنښت غوښتنه کوم تر څو په خپلو اړوندو برخو کې نوي درسي کتابونه او نور درسي مواد برابر کړی څو تر چاپ وروسته د ګرانو محصلینو په واک کې ورکړل شي.

د لوړو زده کړو وزارت دا خپله دنده بولي چې د ګرانو محصلینو د علمي سطحې د لوړولو لپاره معیاري او نوي درسی مواد برابر کړي.

په پای کی د افغان ماشومانو لپاره د جرمنی کمیټې او ټولو هغو اړوندو ادارو او کسانو څخه مننه کوم چې د طبي کتابونو د چاپ په برخه کې یې هر اړخیزه همکاري کړې ده.

هیله مند یم چې نوموړې پروسه دوام وکړي او د نورو برخو اړوند کتابونه هم چاپ شي.

په درنښت
پوهاند ډاکتر عبیدالله عبید
د لوړو زده کړو وزیر
کابل، ۱۳۹۲

# د درسي کتابونو د چاپ پروسه

قدرمنو استادانو او ګرانو محصلينو!

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لويو ستونزو څخه ګڼل کېږي. يو زيات شمير استادان او محصلين نوي معلوماتو ته لاس رسی نه لري، په زاړه ميتود تدريس کوی او له هغو کتابونو او چپترونو څخه ګټه اخلی چې زاړه دي او په بازار کې په ټيټ کيفيت فوتوکاپي کېږي.

د دې ستونزو د هوارولو لپاره په تېرو دوو کلونو کې مونږ د طب پوهنځيو د درسي کتابونو د چاپ لړۍ پيل او تر اوسه مو ۱۱۶ عنوانه طبي درسي کتابونه چاپ او د افغانستان ټولو طب پوهنځيو ته استولي دي.

دا کړنې په داسی حال کې تر سره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰ ـ ۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتيژيک پلان کې راغلي دي چې:

"*د لوړو زده کړو او د ښوونې د ښه کيفيت او زده کوونکو ته د نويو، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړينه ده چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د ليکلو فرصت برابر* شي د تعليمی نصاب د ريفورم *لپاره له انګريزی ژبې څخه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسی موادو ژباړل اړين دي، له دې امکاناتو څخه پرته د پوهنتونونو محصلين او استادان نشي کولای عصري، نويو، تازه او کره معلوماتو ته لاس رسی پيدا کړي*".

د افغانستان د طب پوهنځيو محصلين او استادان له ډېرو ستونزو سره مخامخ دي. نويو درسي موادو او معلوماتو ته نه لاس رسی، او له هغو کتابونو او چپترونو څخه کار اخيستل چې په بازار کې په ډېر ټيټ کيفيت پيداکېږي، د دې برخې له ځانګړو ستونزو څخه ګڼل کېږي. له همدې کبله هغه کتابونه چې د استادانو له خوا ليکل شوي دی بايد راټول او چاپ کړل شي. د هيواد د اوسنی حالت په نظر کې نيولو سره مونږ لايقو ډاکترانو ته اړتيا لرو، ترڅو وکولای شي په هيواد کې د طبي زده کړو په ښه والي او پرمختګ کې فعاله ونډه واخلي. له همدې کبله بايد د طب پوهنځيو ته زياته پاملرنه وشي.

تراوسه پوري مونږ د ننګرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ او کاپیسا د طب پوهنځیو او کابل طبی پوهنتون لپاره ۱۱۶عنوانه مختلف طبي تدریسي کتابونه چاپ کړي دي. د ننګرهار طب پوهنځی لپاره د ۲۰ نورو طبي کتابونو د چاپ چارې روانې دي. د یادونې وړ ده چې نوموړي چاپ شوي کتابونه د هیواد ټولو طب پوهنځیو ته په وړیا توګه ویشل شوي دي.

ټول چاپ شوی طبی کتابونه کولای شی د www.ecampus-afghanistan.org ویب پاڼی څخه ډاونلوډ کړی.

کوم کتاب چې ستاسی په لاس کې دی زمونږ د فعالیتونویوه بېلګه ده. مونږ غواړو چې دې پروسې ته دوام ورکړو تر څو وکولای شو د درسي کتابونو په برابرولو سره د هیواد له پوهنتونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچر نوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره دا اړینه ده چې د لوړو زده کړود موسساتو لپاره هر کال څه نا څه ۱۰۰ عنوانه درسی کتابونه چاپ کړل شي.

د لوړو زده کړو د وزارت، پوهنتونونو، استادانو او محصلینو د غوښتنې په اساس په راتلونکی کی غواړو چې دا پروګرام غیر طبي برخو لکه ساینس، انجنیري، کرهنې، اجتماعی علومو او نورو پوهنځیو ته هم پراخ کړو او د مختلفو پوهنتونونو او پوهنځیو د اړتیا وړ کتابونه چاپ کړو.

له ټولو محترمو استادانو څخه هیله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه ولیکي، وژباړي او یا هم خپل پخواني لیکل شوي کتابونه، لکچر نوټونه او چپټرونه ایډېټ او د چاپ لپاره تیار کړي. زمونږ په واک کې یې راکړي، چې په ښه کیفیت چاپ او وروسته یې د اړوندې پوهنځۍ، استادانو او محصلینو په واک کې ورکړو. همدارنګه د یادو شویو ټکو په اړوند خپل وړاندیزونه او نظریات زمونږ په پته له مونږ سره شریک کړي، تر څو په ګډه پدې برخه کې اغیزمن ګامونه پورته کړو.

له ګرانو محصلینو څخه هم هیله کوو چې په یادو چارو کې له مونږ او ښاغلو استادانو سره مرسته وکړي.

د یادونی وړ ده چی د مولفینو او خپروونکو له خوا پوره زیار ایستل شوی دی، ترڅو د کتابونو محتویات د نړیوالو علمی معیارونو په اساس برابر شی خو بیا هم

کیدای شی د کتاب په محتوی کی ځینی تیروتنی او ستونزی وجود ولری ، نو له دی امله له درنو لوستونکو څخه هیله مند یو تر څو خپل نظریات او نیوکی د مولف او یا زمونږ په پته په لیکلی بڼه را ولیږی، تر څو په راتلونکی چاپ کی اصلاح شی.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمنی کمیټی او دهغی له مشر ډاکتر ایروس څخه ډېره مننه کوو چی ددغه کتاب د چاپ لګښت یی ورکړی دی. دوی په تیرو کلونو کی هم د ننګرهار د طب پوهنځی د ۲۰ عنوانه طبی کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه درلود.

په ځانګړي توګه د جی آی زیت (GIZ) له دفتر او CIM ( Center for International Migration and Development) یا د نړیوالی پناه غوښتنی او پرمختیا مرکز چې زما لپاره یې په تېرو دریو کلونو کې په افغانستان کې د کار امکانات برابر کړی دي هم مننه کوم.

د لوړو زده کړوله محترم وزیرښاغلي پوهاند ډاکترعبیدالله عبید، علمی معین ښاغلي پوهنوال محمد عثمان بابری، مالي او ادري معین ښاغلی پوهنوال ډاکتر ګل حسن ولیزي، د ننګرهار پوهنتون رییس ښاغلی ډاکتر محمد صابر، د پوهنتونو او پوهنځیو له ښاغلو رییسانو او استادانو څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ یې هڅولی او مرسته یې ورسره کړی ده.

همدارنګه د دفتر له ښاغلو همکارانو څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې یې نه ستړې کیدونکی هلی ځلی کړی دي.

ډاکتر یحیی وردګ، د لوړو زده کړو وزارت
کابل، مارچ ۲۰۱۳
د دفتر ټیلیفون: ۰۷۵۶۰۱۴۶۴۰
ایمیل: textbooks@afghanic.org
wardak@afghanic.org

د ښښتن د نوم په حمد او مننه

(له خدای نه ډار د پوهې بنسټ دی)

## ډالۍ!

دا د درملو د استعمال عملي لارښود کتاب افغان ډاکټرانو او نورو روغتيايي کارکوونکو ته چې په ډېرو سختو شرايطو کې د روغتيايي خدمتونو په عرضه بوخت دي، ډالۍ کوم.

# محتویات

# تقریظ

زما لپاره ډېر د خوښۍ ځای دی چې له ښاغلي Dr.M.L.von Blumröder د درملو د عملي استعمال د رسالې په هکله خبرې وکړم.

هغه د درملو ټول کلینیکي ضروري معلومات په ډېر ښه شکل سره راټول کړي دي.

د نسخې لیکلو په وخت کې د ډاکټرانو د د درملو په هکله د اړتیا وړ مواد مثلاً د درملو د عرضه کولو شکل، د هغوی ډوز، د تطبیقولو طرز، احتمالي اړخیزې او مهمې اغیزې او د درملو مضاد استطبابات ځای پر ځای شوي دي، او د لویانو او ماشومانو لپاره د درملو په اړه معلومات په اسانۍ تر لاسه کیدای شي.

په دې رساله کې هڅه شوې ده چې هغه درمل چې د نړیوالې روغتیایي ادارې (WHO) د اساسي درملو په لست کې ذکر دي او له بله پلوه په افغانستان کې پیدا کیدای شي د ورځنۍ پوهې په اساس لازم معلومات برابر شوي دي.

د مسایلو د جزیاتو په هکله چې مې کومې خبرې د رسالې له لیکوال سره درلودې ډېرې ګټورې وې.

زه باور لرم چې دا رساله کولای شي خپل ارزښت د یو ګټور لارښود په څیر د ډېرو ناروغیو په درملنه کې په زبات ورسوي.

لندن، ۱۹۹۸

Duncan W.Vere MD, FRCP, FFPM
*Professor Emeritus in Therapeutics, University of London*
*Secretary of the Examining Board, the Faculty of Pharmaceutical Medicine, Royal College of Physicians, London, UK*
*Consulting Physician, The Royal London Hospital*
*Former Member, Committee on Safety of Medicines and of the UK Medicine Commission*

# ۱ ـ د نسخې ليکلو د زده کړې ښه لار

## څرنګه د ناروغ ستونزه پيدا او تشخيص وضع کړو؟

د ناروغ د ستونزې د حل اساس هميشه يو راز وي، دې ته اړه وي چې له لاندينيو مرحلو يا پړاوونو څخه تير شو:

۱- - غټې شکايتونه مشخص شي.

۲- - د ناروغۍ ښه تاريخچه واخستل شي.

۳- - د جسم بشپړه کتنه يا معاينه اجرأ شي.

۴- - د ناروغ ستونزې وټاکل شي او د تشخيص لپاره تصميم ونيول شي.

له پورتنيو څلورو پړاونو وروسته تاسې د ناروغ غټه يـا عمـده سـتونزه پيـدا کـولای شـئ او احتمالي تشخيص ته نږدې کيږئ او ممکن د څو نورو حادثو په اړه د تفريقي تشخيص لپاره فکر وکړئ.

د مثال په ډول، تاسې يو کوچنی ماشوم چې له درې ورځو راهيسې نـس ناسـتی او منځنـی درجه ډيهايدريشن لري ګورئ او په معاينه کې تاسـې تـه څرګنـديږي چـې پـه هغـه کـې د ويټامين A د کمښت د سترګو نښې موجودې دي، خو د خوارځواکـۍ يـا سـؤتغذي نـورې نښې په کې نشته، تشخيص حاد نس ناستی دی له منځني ډيهايدريشن سـره. د هغـه اضـافي تکليف د ويټامين A کمښت دی.

ستاسی نسخه بايد د خولي د لارې د ريهايدريشن د محلول او ويټامين A درلودونکي وي.

۵ - په هغه صورت کې چې په تشخيص ډاډه نه ياست، بايد له دې څخـه نـوره لټه هم وشي، تر څو تشخيص تثبيت شي اويا تغير ومومي.

## څرنګه ښه او منطقي درملنه پيل شي؟

د ناروغۍ له تشخيص او د ضمني ستونزو په نظر کې نيولو وروسته، درملنه پيل کيږي.

يو ځل بيا دې لانديني ساده او معقول ټکي عملي شي:

۱- - د درملني موخه يا هدف مشخص شي.

د بېلګې په ډول: په Pneumonia کې د ټولو Bacteria ګانو لـه منځـه وړل، د مايعـاتو اعاده د هغې د ضياع په حالت کې او د درد کنترول د چونګابښ يا سرطان په ناروغ کې.

۲- - د درملو له اساسي لست څخه د ناروغـۍ د تشـخيص مناسـب درمـل غـوره کول.

هغه درمل بايد وکارول شي، چې اغيزمن او د مشکل د لـه مينځـه وړلـو لپـاره مناسـب وي. درمل بايد مصؤن او ارزان وي او استعمالول يې مشکل نه وي. د امکـان پـه صـورت کـې هميشه بايد د خولې له لارې استعمال نسبت زرقي لارې ته مرجح وګڼل شي.

همیشه باید په دې اړه فکر وشي، چې آیا دا درمل که له نورو درملو سره په یو وخت استعمال شي، څه بدلون مینځ ته راوړي او که نه؟ او یا د دې درملو د استعمال لپاره کوم مضاد استطباب (مثلاً بلاربښت یا حمل) موجود دی که نه ؟ فکر وشي.

۳ - د نسخې لیکلو په وخت کې باید Generic نومونه ولیکل شي. د درملو تجارتي نومونه باید و نه لیکل شي. د درملو مستحضر شکل (یعنې چې په څه ډول دي، ټابلیټ، شربت..)، مقدار یا اندازه او د درملنې وخت چې څومره باید دوام وکړي، باید په نسخه کې ذکر شي.

د هر درمل د تجویز لپاره باید مشخص او منطقي دلیل موجود وي.

(د ښې نسخې نمونې ته دې مراجعه وشي ←)


ډاکټر محتاط ام ډي
Dr. Careful MD
د ناروغ نوم:
نېټه:
تشخیص:
پته: عمومي سړک، لوی

*۱ - انځور: د ښې نسخې نمونه*

۴ — ناروغ وپوهوئ چې کوم درمل د څه لپاره ښه دي، څومره او د څه وخت لپاره باید استعمال شي.

۵ - د ناروغ په تعقیبولو سره د درملنې نتیجه ارزیابي کړئ. په هغه صورت کې چې درملنه اغیزمنه نه وي، وپوښتل شي، چې درمل په صحیح شکل استعمال شوي که نه؟ که درمل په صحیح ډول مصرف شوي وي، خپل تشخیص له سره ارزیابي کړئ.

د درملو استعمال باید په لازم وخت کې ختم شي، ځکه د درملو ختمول لکه د هغوی د پیلولو یو شان ارزښت لري.

۶ — درمل ژر مه بدلوئ، د هغې د اغیزې لپاره باید پوره وخت ورکړل شي.

۷ — کله چې درمل اغیزه و نه کړي او یا د هغوی بدې اغیزې ښکاره شي، درمل قطع کړئ.

# ۲- د لويانو او ماشومانو لپاره اساسي درمل

## الف- عمومي ځرګندونې

لاندينی لست د اساسي درملو درلودونکی دی (د الفبې د ټکو پا اساس) او د لويانو (کاهلانو) او ماشومانو لپاره يې اندازې صحيح او سمې دي.

دوايي مستحضرات په خپل عام شکل چې په درملتونونو کې پيدا کيږي ياد شوي دي، د بېلګې په ډول: *Tablets 25 mg*.

د امپولونو په صورت کې لومړی په امپول کې د درملو ټول مقدار ذکر شوی او بيا په لينديء يا قوس کې په يو ملي ليتر کې د درملو اندازه ليکل شوې ده. مثلاً د ۲ ملي ليترو امپول، چې د ۲۰۰ ميلي ګرامو درملو درلودنکی دی (=100 mg/ml)

په هغه صورت کې چې درمل د **Infusion** په شکل تطبيق شي، بايد په ياد مو وي چې معمولاً شل څاڅکي د يو ميلي ليتر سره مساوي کيږي. **20 = 1 ml څاڅکي.**

### د ماشومانو لپاره د درملو اندازه

د ماشومانو لپاره د درملو اندازه دې د بدن د في کيلو ګرام وزن د ټاکل شوې اندازې په حساب په ورځ (څلرويشت ساعتو) کې ذکر شي دا د ورځې مجموعي مقدار بايد د ورځې څو ځلې په کسري اندازو د ورکړل شوو لاربښوونو له مخې مصرف شي.

*د بېلګې په ډول :*

*د يوې ورځې د درملو لازم مقدار 50 mg/kg/ day دی چې په دري کسري ډوزونو ورکول کيږي.*

*نو يو ماشوم چې 15 kg وزن ولري په ۲۴ ساعتو کې 15x50 mg = 750 mg درملو ته اړه لري او دا مجموعي مقدار بايد په ۲۴ ساعتونو کې په دري کسري ډوزونو ورکړل شي. 750 mg تقسيم پر ۳ مساوي کيږي 250 mg ، يعني هر اته ساعته وروسته 250 mg.*

### د ماشوم وزن څرنګه اټکلوئ؟

په عملي کار کې د ماشومانو د وزن د ټاکلو لپاره ډيرې لارې شته دی چې ډيرې يې د امريکايي او انګليسي ماشومانو په اټکل رامنځ ته شوي دي، او دغه وزنونه د افغان ماشومانو لپاره چې د سوءتغذي په ځنډني شکل اخته دي، ډير لوړ دي.

د وزن د اټکلولو اسانه لار چې په افغانستان کې حقيقت ته نږدې ده، هغه لاره ده چې روغتيا د نړيوالې ادارې په نوو روغتيايي بيړنيو کيټونو (The New Emergency Health Kit) ، کې ورکړل شوې ده.

| لويان | يولس کلن | **پنځه کلن** | يو کلن | ۲ مياشتينی | **مټک يا عمر** |
|---|---|---|---|---|---|
| | 35 kg | 15 kg | 8 kg | 4 kg | وزن |

**د دې څلورو ټکو په یاد درلودل عمر پر وزن د ماشومانو د عمر یا مټ د اټکلولو له پاره ښه او د عملي کیدو وړ اساس دی.**

***لنډیزونه یا اختصارات*** *(Abbreviations)*

## دوایي مستحضرات

IU= International Units =نړیوال یا بین المللی واحد
M IU = Mega IU = یو میلیون بین المللی یا نړیوال واحد
3 M IU = 3 Million =3000 000 IU د مثال په ډول:
1g = 1 gram = 1000 mg

## د درملو د تطبیق لارې

Oral = فمي (د خولې له لارې باید واخیستل شي)
IV = وریدي (د ورید یا شین رګ له لارې باید ورکړل شي)
IM = عضلی (د عضلي لارې باید ورکړل شي) *(دویم انځور)
SC = د پوستکي لاندې (Sub cutaneous تحت الجلدی)
I N H = انشاقي (by inhalation د انشاق په وسیله) * (دریم لمبر انځور)
Rectal (د مقعد له لارې چې د بې ستنې سرنج په وسیله تطبیقیږي)
Vaginal (چې د مهبل له لارې تطبیقیږي)

### د خولې له لارې د درملو ورکول:
### څو عملي ټکي:

- ټابلیټونه باید میده او په یوه سپینې یا کاچوغه کې چې بوره، شیدې اویا ګبین یا شات او پاکې اوبه په کې اچول شوي وي ورکړل شي.
- دا باید همیشه د ماشوم والدینو ته وواياست چې شربتونه باید همیشه له پاکو خوټیکیدلو اوبو څخه جوړ شي، شربتونه یوازې له جوړیدو (له اوبو ګډولو) وروسته تر دوه اوونیو پورې د استعمال وړ دي.
- پنځه میلي لیتر (5 ml) مساوي دي د چای له یوې کاچوغي سره.

## د درملو د تطبیقولو دفعې یا پیرې ( Frequency )

**که ناروغانو ته درمل په لړو دفعو ورکړل شي ښه کار دی. له همدې کبله ښه لاره په لست کې ذکر شوې ده. ځینې درمل لکه Penicillin V که د ورځې څلور کرته ورکړل شي ښه کار دی، خو کیدلای شي چې هغه د ورځي درې کرته تجویز کړو ځکه چې ناروغ ته په اسانۍ یادیږي.**

## ب - د زرقیاتو په هکله

### *د زرقیاتو استطبابات او درست تجویز*

**پرته له ضرورته زرقیات مه ورکوئ**

- ډیر ماشومان د زرقیاتو له جروحاتو له کبله د همیشه لپاره معیوب شوي دي.
- د ناوولو او ککړو ستنو او سرنجونو له کبله په ډیرو خلکو کې ښخې (ابسې) او نور انتانات را پیدا شوي دي.
- خطرناک انتانات لکه B هیپا تایتس، ملاریا او AIDS د ککړو او منتنو زرقیاتو په وسیله انتقال کولای شي.
- په پاکستان کې (مشابه په افغانستان کې) د فلج (Paralysis) یو په درې پیښې چې د Poliomyelitis له کبله مینځ ته راغلي دي د هغې علت بې ضرورته عضلي زرقیات دي.
- زرقیات ګران دي او د هغوی اړخیزې اغیزې یا جانبي عوارض ژر مینځ ته راځي.

**د زرقیاتو لپاره محدود استطبابات:**

- په وخیمو ناروغیو کې چې د خولې له لارې درملنه بیرنی یا عاجله اغیزه نه شي کولای او یا په هغو ناروغانو کې چې د خولې له لارې درمل نه شي اخیستلای. (لکه په بې سده ناروغانو کې) هغه درمل چې د خولې له لارې نه جذبیږي لکه Gentamicin.
- په بطني ناروغیو او یا بطني عملیاتونو کې، هغه وخت چې ناروغ ته د خولې له لارې د خوړلو او څښلو اجازه نه وي.
- د ځنډنیو کانګو په پیښو کې.
- په ځینو ځانګړو انتاناتو کې، د خولې د لارې د انتي بایوتیکو د اوږدې درملنې په ځای چې ناروغ یې ممکن مخکې له وخت نه قطع کړي یو یا څو زرقیات ممکن تجویز شي (مثلاً په سیفلیس او یا Streptococcal tonsillitis کې).

**هغه مهم ټکي چې د زرقیاتو په وخت کې مو په پام کې وي**

- د زرقیاتو د تطبیق لارښوونې (هدایات) باید هغه چا ته چې زرق کوي، پوره واضح او روښانه وي. په نسخه کې ولیکئ چې د یو امپول څو ملي لیټر باید تطبیق شي او یا څومره د پوډري محلول! همدا راز واضح کړئ چې چیرته باید زرق شي (عضلی، وریدی او که تحت الجدی) او څو کرته.

**ډیر مهم معلومات چې د زرقیاتو په هکله یې باید ولولئ:**

۵٦ مخ ولولئ (Procaine benzylpenicillin) "هیڅ وخت پنسلین مه ټسټ کوئ" او "څرنګه پوهیدای شئ چې ناروغ د پنسلینو په مقابل کې الرجي لري"

## په ماشومانو کې د عضلي زرقیاتو ښه لاره

غالباً عضلي زرقیات په ماشومانو کې په غلط شکل تطبیق او د هغوی د دایمي معیوبیت سبب کیږي.

لاندینی انځور د عضلي زرق د سمې ناحیې ښکارندوی دی:




*۲- انځور: په ماشومانو کې د عضلي زرق سم او صحیح شکل*

## پ - د انشاقي درملو په اړه

***په لویانو او کوچنیانو کې د انشاقي درملو د استعمال ښه لار***

**انشاقي درمل که څه هم ګران دي، خو د استما په ناروغانو کې د درملو د رسیدلو ښه او اغیزمنه لاره ده. دا ډیره مهمه ده چې پوه شو، چې هغه څرنګه په ښه ډول استعمال کړو، څکه چې یوازې د انشاقي درملو سم او صحیح استعمال ښه نتیجه ورکوي.**

### په ماشومانو کې د هغوی د استعمال ښه لار

**له انشاقي آلې (Spacer) څخه په ګټې اخیستلو انشاقي درمل په اسانۍ ماشومانو ته ورکول کیدای شي، چې له کاغذ او یا د یو غټ پلاستیکي بوتل له ۱/۳ برخې څخه جوړیدای شي.**

**۱- - د انشاقي موادو بوتل ښه وښوروئ.**

**۲- - بوتل د ضرورت وړ انشاقي الې پورې چې د ماشوم خوله او پزه پټه کړي وصل کړئ.**

**۳- - که ډیر انشاق (Puff) ته اړه وي نو د انشاقي موادو بوتل ته فشار ورکړئ. وروسته له پنځو دقیقو دغه عملیه بیا تکرار کړئ.**

**۴- - ماشوم پریږدئ، چې د یوې دقیقي لپاره د انشاقي آلې له لارې تنفس وکړي.**

**د انشاق وسیله (یوه کوچنۍ کڅوړه اویا د یو غټ پلاستیکي بوتل یو په دریمه برخه استعمالولای شئ.**




*۳-انځور : ماشوم ته د انشاقي درملو د تطبیق ښه لار*

## په لويانو کې د انشاقي درملو د تطبيق سمه لار:

۱- - د درملو بوتل بايد ښه وښورول شي.
۲- - ناروغ دې ساه وباسي.
۳- - ناروغ دې نومورې آله په خپله خوله کې کيږدي او فشار دي ورکړي او ژوره ساه دې واخلي، هوا دې معدې ته نه تيروي. په هغه صورت که چې له يو Puff څخه ډير ضرورت وي، پنځه ثانې وروسته دې عمليه تکرار کړي.
۴- - ناروغ دې خوله پټه کړي او تر پنځلس ثانيو پورې دې ساه بنده کړي.

# ت - د درملو په اړه معلومات

***استطباب یا*** *Indications*

د دې عنوان لاندې د درملو اساسي او عمده استطبابات ذکر شوي دي.

***مضاد استطباب یا*** *Contra-indications*

د ځینو درملو استعمال په ځینو حالاتو کې لکه بلاربښت (حاملګی) کې مضاد استطباب دی، ځکه چې زیان یې نسبت ګټې ته ډېر دی، نو له همدې کبله په دغسې حالاتو کې باید استعمال نه شي.
د ځینې درمل باید په ځینو ځانګړو حالاتو کې کې استعمال نه شي، د دې جملې مانا دا ده چې د هغوی استعمال ممکن خطر ولري خو د هغوی تجویز په قطعي ډول منع شوی نه دی.
ډاکټر باید ټول احتمالي خطرونه او د درملو د استعمال ګټې او د درملنې نور امکانات په نظر کې نیولو سره د درملو د استعمال یا نه استعمال په اړه تصمیم ونیسي.

***د بلاربښت (حمل) په وخت کې د درملو استعمال یا*** *Drugs during pregnancy*

د بلاربښت په هر وخت کې د درملو استعمال د جنین لپاره د خطر سبب کېدلای شي، دا ټکی باید کله چې هغو ښځو ته ، چې د بلاربښت قابلیت لري، نسخه لیکئ، په نظر کې ونیسئ.
د بلاربښت په بهیر کې دې یوازې هغه وخت درمل تجویز شي، چې مطلق استطباب یې موجود وي، او همدا راز هغه وخت دې ورکړل شي، چې مور ته یې ګټه د جنین د زیان څخه ډېره وي.
د بلاربښت په لومړیو دریو میاشتو کې ځینې درمل په جنین (Teratogenic) اغیزه لري، یعنې د ولادې سؤشکلونو سبب کیږي.
د بلاربښت په دویمو درې میاشتو او دریمو درې میاشتو (۴-۹ میاشتو) کې درمل د جنین په نمو اغیزه کوي یا د جنین په انساجو سمي اغیزې کوي.
د لنګون له متوقعه وخت نه لږ مخکې یا د لنګون په وخت کې د درملو ورکول کیدای شي د لنګون په پروسه یا نوي زیږیدلي ماشوم باندې بده اغیزه ولري.

***د تي ورکولو په وخت کې د درملو استعمال یا*** *Drugs during lactation*

تې ورکونکې مور ته د درملو ورکول په ماشوم یې هم کیدای شي لږې اغېزې ولري. سمي پېښې هغه وخت رامنځ ته کیږي، چې د درملو ډېره اندازه په شیدو یا پیو کې تیره شي.
د ډېرو درملو په هکله پوره معلومات په لاس کې نه شته، نو له همدې کبله دې تي ورکونکې مور ته یوازې هغه وخت درمل استعمال شي، چې خورا ډېر ضرورت ورته وي.

***د درملو اړخیزې اغیزې (جانبي عوارض) یا*** *Side effects*

تقریباً ټول درمل اړخیزې اغیزې لري، چې په مختلفو درجو ښکاره کیږي. په لاتدې لست کې یوازې هغه اړخیزې اغیزې چې ډېرې عامې دي، یا کوم ځانګړې ارزش لري، ذکر شوي دي.

***له نورو درملو سره د یوځایي استعمال اغېزې یا*** *Drug interactions*

کله چې یو ناروغ په یو وخت کې له یو درمل نه ډېر استعمالوي، کیدای شي هر درمل مستقلاً عمل وکړي اویا یو د بل عمل متأثره کړي. د یو بل د عمل متأثره کیدل ممکن یو د بل پر ضد (Antagonism) وي او له همدې کبله د درملو اغیزه کموي. د ګډ استعمال په صورت کې کیدای شي یو د بل اغیزې ډېرې کړي، او د هغوی اړخیزې او سمي اغیزې لوړې شي.
په لاندې لست کې د درملو په خپل منځ کې ټولې اغیزې نه دي ذکر شوي، یوازې هغه چې د کلینیک له نظره مهمې دي یادداشت شوي دي.

# ټ – د ماشومانو او لويانو لپاره د اساسي درملو لست

**Acetylsalicylic Acid***

اسيټايل سالي سليک اسيد

(Aspirin)

اسپرين

*Tablets 100, 300 او 500 mg*

**استطبات:** • خفيف او متوسط دردونه: سرخوږی، د غاښونو درد،د بندونو او عضلاتو دردونه، Dysmenorrhoea نيمسري (Migraine)

• تبه • د التهاب ضد او په روماتيک ناورغيو کې د درد ارامووونکی • د وينې د علقه کيدو د مخنيوي لپاره د Myocardial infarction او د زړه د انجين (angina) په Stroke ناورغانو ، په Atrial fibrillation او له Myocardial infarction وروسته.

☜ له شپږ کالو کم عمره ماشومانو کې Paracetamol استعمال کړئ د Reye's syndrome له کبله (حاده Encephalopathy او د ينې عدم کفايه).

فمي (د خولې له لارې) Oral

**د تبې او درد لپاره (په کم ډوز)**

**ماشومان**

**(له ٦- ١٢ مياشتو 75 mg)**

**(له ١- ٥ کالو 150 mg د ورځې تر ۴ ځلو پورې)**

**له ٦- ١٢ کالو 250-30 mg د ورځې تر ۴ ځلو پورې**

**لويان** 500-600 mg **د ورځې تر ۴ ځلو پورې**

**د التهاباتو لپاره** Anti-inflammatory **(لوړ ډوز)**

**له ٦- ١٢ کالو 500 mg د ورځې ٣-۴ ځله**

**لويان** 500-1000 mg **د ورځې ٣-۴ ځله**

**د وينې د پرنديدو يا علقه کيدو ضد**

**لويان** د ورځې 100 mg ټول عمر

**مضاد استطباب:** د معدي معايي سيستم د ټپونو په پېښو کې او وينې تويدنو (نزف) که مضاد استطباب دي، همدا راز که د NSAIDs په مقابل کې حساسيت موجود وي مضاد استطباب دي.

د Asthma په پېښو کې د شپږ کالو کم عمره ماشومانو که دې استعمال نه شي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په دريو وروستيو مياشتو کې مضاد استطباب دي ځکه چې د وينې تويدنې امکان موجود دی ، او کيدای شي د زږيدلو د پروسې د پيل د ځنډيدلو سبب شي، او يا د زږيدلو پروسه اوږده کړي او په ضمن کې د زياتې وينې تويدنې سبب شي. د بلاربښت په وخت دې له پاراسيتامول څخه کار واخستل شي.

**د تي ورکول په وخت کې:** اسپرين دې نه تجويزيږي. لږ ډوزونه تجويز کولای شئ يا په بل عبارت لږ ډوزونه محفوظ دي.

**اړخيزې اغيزې:** معدي معايي پرندې يا علقه شوې وينې تويدنې (د احساس وړ نه وي)، د Epigastric ناحيې دردونه، د زړه بدوالی، استما، Dizziness او په غوږونو کې شرنګاری

(Tinnitus) د تسمم نښې دي ، ډوز کم کړئ.

**له نورو درملو سره یوځایي اغیزې:** له کورتیکوستروئید او NSAIDs (Indomethacin ،Ibuprofen, Diclofenac) سره یو ځای ور نه کړل شي. چون د ټپونو او وینې تویدنې د زیاتیدو سبب کیږي. له Probenecid سره دې یو ځای نه ورکول کیږي.

*NSAIDs (Non Steroidal Anti Inflammatory Drugs)*

---

**Adrenaline***

**اډرینالین**

(Epinephrine)

**اپپی نفرین**

*Ampoules (1:1000)*

**چې د** *1 mg* **درلودونکي دي**

**استطباب:** • Anaphylactic shock (شدید الرجیک عکس العمل) • وخیمه Asthma • د زړه دریدل یا Cardiac arrest.

☜ د محلول رنګ معمولاً روڼ او شفاف وي که رنګ یې ګلابي اویا نسواري ته بدلون موندلی وي مه یې استعمالوئ.

IM/SC

**په Anaphylactic shock او یا وخیمه استما (زری) کې یو واحد دوز تطبیق کړئ، چې له لسو دقیقو وروسته یې تکرارولی شئ.**

**ماشومان**

**له ۵ کاله کم عمره ماشومانو لپاره یو امپول د سوډیم کلوراید 0.9 % محلول په 9 ml کې نري (رقیق) کړئ.**

**۱- ۱۲ میاشتو** 0.05 mg **چې مساوي دی له** 0.5 ml **نري شوي محلول سره**

**۱- ۲ کالو** 0.1 mg **چې مساوي دی له** 1ml **نري شوي محلول سره**

**۲-۵ کالو** 0.2-0.4 mg **چې مساوي دی له** 2-4 ml **نري شوي محلول سره**

**٦- ۱۲ کالو** 0.5 mg

**لویان** 0.5-1 mg

IV

**د زړه دریدل یا ارست** (Cardiac arrest)

**د ورید له لارې ذکر شوي دوزونه تطبیقولای شئ خو د سوډیم کلوراید 0,9 % محلول په 9 ml کې نري یا رقیق شوي.**

**مضاد استطباب:** د وینې د لوړ فشار په موجودیت کې ډیر احتیاط او پاملرنه پکار ده. د زړه په Ischaemic ناروغیو (Angina, Myocardial infarction) کې نه ورکول کیږي. د زړه د بې کفایتۍ او د زړه د وژونکې بې نظمۍ خطر، خصوصا د لوړو ډوزونو له کبله په زړو خلکو کې موجود دی.

**بلاربښت:** په بیړنیو (عاجلو) پېښو که مضاد استطباب نه دي.

**د تي ورکولو په بهیر کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخیزې اغیزې:** سرخوږ، اضطراب، رعشه Hypertension, Arrhythmia, Tachycardia

**له نورو درملو سره یوځایي اغیزې:** د لوړ فشار خطر له Beta-blocker, Ergometrine (مثلاً Atenolol یا Propranolol) او د اضطراب ضد درملو ( Amitriptykine) سره.

---

**Albendazole***

**البنډازول**

*Tablets 400 mg*

**استطباب:** •Helminths (چینجي) • Hydatid ناروغۍ.

یادونه: د اسکاریس (Roundworm)، Hookworm, Enterobius (Pinworm, Oxyuris) Trichuris (Whipworm) او Strongyloides پر ضد ډیر اغیزمن دي.

له دوه کالو کم عمره ماشومانو او د بلاربښت په وخت کې دې نه تجویزیږي.

**(د خولې له لارې Oral)**

**اسکاریس، Strongyloides, Whipworm Hookworm**

**له دوه کالو غټ ماشومان او لویان:**

400 mg یو واحد ډوز، د درې ورځ لپاره.

**Pinworm**

**له دوه کالو غټ ماشومان او لویان:**

400 mg یو واحد ډوز، دوه اوونۍ وروسته دې تکرار شي.

**Hydatid ناروغۍ**

10 mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو د درې میاشتو لپاره

**مضاد استطباب:** له دوه کالو کم عمره ماشومان

**بلاربښت:** د بلاربښت په لومړیو درې میاشتو کې مضاد استطباب دي، له درملنې وروسته دې هم تر یوې میاشتې له بلاربښت نه ځان وساتل شي.

**په تي ورکولو کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخیزې اغیزې:** معدی معائي ستونزې، کانګې، سرخوږی،ګنګسي، تبه، نادراً د ویښتانو د ارجاع وړ تلل، نسناستی،د Hydatid ناروغۍ د درملنې لپاره په لوړ دوز د ینې د انزایمونو لوړیدل.

**له نورو درملو سره یوځایي اغیزې:** له نورو درملو سره د یو ځای ورکولو له کبله د یادولو وړ کومې اغیزې نه لري.

---

**Aluminium hydroxide***

**الومینیوم هایډروکسایډ**

Antacid ته دې مراجعه وشي. (۱۵ مخ)

**Aminophylline***

## امینو فیلین

*Tablets*
*100 and 200 mg*
*10* **های** *Ampoules*
*250 mg* **چې د** *ml*
**لري.**
*(25 mg/ml)*

**استطباب:** • استما • د قصباتو شدید تشنج له Pneumonia سره

**یادونه:** د لنګون په وخت کې د جنین د Hypoxia سره مرسته نه کوي.

☜ د درملنې په وخت کې د تسمم نښو ته متوجه اوسئ، ځکه چې د درملنې او تسمم مقدار سره ډیر نږدې دی. ډوز د هر سړي د وزن مطابق او کلینیکي Response له مخې عیار کړئ.

**د تسمم لومړنۍ نښې:** کانګې، نارامي، بې خوابي، Tachycardia، تبه. د دې نښو په موجودیت کې ډوز کم او یا درمل قطع کړئ.

**د تسمم مؤخرې نښې:** اختلاجات، د تنفس توقف.

**څنګه کولای شئ چې وخیمې اړخیزې اغیزې (جانبي عوارض) کم کړئ:**

- همیشه کوښښ وکړئ چې دا پیدا کړئ چې ناروغ مخکې د امینوفیلینو او یا تیوفیلینو په وسیله تداوي شوی که نه.
- همیشه هغوی ته چې مخکې د امینوفیلینو له درملنې لاندې و نیم ډوز توصیه کړئ. همیشه زرقیات ډیر ورو اجرا کړئ، په ۲۰ دقیقو کې.
- د کلینیکي حالت په نظر کې نیولو همیشه فمي ډوز ورو-ورو لوړ کړئ، وروسته له درې ورځو.

Oral

**ماشومان** 12-15 mg/kg/day **(په درې کسري ډوزونو)**

**۱-۵ کالو** 25-50 mg **د ورځې درې ځله**

**۶-۱۲ کالو** 50-150 mg **د ورځې درې ځله**

**لویان** 100-300 mg **د ورځې درې ځله.**

**شدید تنفسي تشنجات** (Severe Bronchospasm)

**که ناروغ په وروستیو ۲۴ ساعتو کې امینوفیلین نه وي اخیستي:**

IV

**ماشومان:** 5 mg/kg د ګلوکوز په 5% محلول کې، ډیر ورو په ۲۰ دقیقو کې، وروسته 0.9 mg/kg/hour په دوامدار محلول کې ادامه ورکړئ.

**لویان:**

250 mg ډیر ورو په ۲۰ دقیقو کې، وروسته
0.5 mg/kg/hour په دوامدار محلول کې ادامه ورکړئ.

که دوامدار محلول ممکن نه وي، لومړنی ډوز ۸ ساعته وروسته تکرار کړئ. هر څومره ژر چې ممکن وي درملو ته د خولې له لارې دوام ورکړئ.

IM که ناروغ په وروستيو ۲۴ ساعتونو کې امينوفيلين اخيستي وي:
يوازې له پاس ذکر شوو دوزونو، نيم دوز ورکړئ.
عضلي زرقيات ممکن دي، خو ډېر دردناک او لږه اغيزه کوي.

**مضاد استطباب:** د زړه په ناروغيو کې په احتياط تجويز شي، د وينې لوړ فشار، صرعه، peptic ټپونه، د ينې ناروغي.
**بلاربښت:** د بلاربښت په وروستي مياشت کې تجويز نه شي د نوي زېږېدلي د تخريشيت او Tachycardia له کبله.
**د تې ورکولو په وخت کې:** اجتناب دې وشي او يا دې کمترين دوز تجويز شي.
**اړخيزې اغيزې:** Tachycardia, سرخوږ، معدی معائي دردونه، زړه بدوالی، د خواب ستونزې، کانګې، اختلاجات، تنفسي Arrest.
**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** له Erythromycin سره دې يو ځای ور نه کړل شي. له Allopurinol ,Rifampicin, Propranolol, Ciprofloxacin ,Cimetidine او سګرټ څکلو نه دې اجتناب وشي.

---

## Amitriptyline*
### امي ټريپټلين
*Tablets 25 and 50 mg*
*Oral*

**استطباب:** • Depression خصوصاً په هغو حالاتو کې چې مقصد له ارامېدو څخه وي.

**لويان** 50-75 mg يو ځل د شپې له طرفه. که ضرورت وي ورو-ورو دې تر 200 mg پورې لوړ يوړل شي.
د درملنې اغيزې غالباً له ۲-٦ اوونيو پورې څرګندېږي. معمولاً درملنې ته لږ تر لږه تر څو مياشتو ادامه ورکول کېږي. درمل دې دفعتاً نه قطع کېږي.

**مضاد استطباب:** د Myocardial infarction په صورت کې او په Glaucoma کې مضاد استطباب دي په Epilepsy کې دې پاملرنه وشي.
**په بلاربښت او تې ورکولو کې:** مضاد استطباب نه دي.
**اړخيزې اغيزې:** د خولې وچوالی، Sedation، قبضيت، د ليدو ستونزې، د ميتيازو کولو ستونزې (د ادرار احتباس)، Arrhythmia.
**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** د anti-epileptic درملو اغيزې کموي.

---

## Amoxicillin*
### اموکساسيلين
*Tablets/ Capsules 250 and 500 mg*
*125 mg/5 ml شربت*
فمي (Oral)

**استطباب:** فمي استعمال:
• Pneumonia• Sinusitis• Otitis media• د تنفسي لاندينيو لارو انتانات • وچکې يا محرقه • Gonorrhoea • د بولې لارو انتانات (په ځانګړي ډول د بلاربښت په وخت کې)

**ماشومان** (25-50 mg/kg/day په درې کسري دوزونو)
۲-۱۲ مياشتې 62.5-125 mg د ورځې درې ځله.
۱-۵ کال 125-250 mg د ورځې درې ځله.
٦-۱۲ کال 250 mg د ورځې درې ځله.
**لويان** 250-500 mg د ورځې درې ځله.
په شديدو انتاناتو کې د درملو دوز دوه چنده کيدای شي.

**مضاد استطباب:** د پنسلينو په مقابل کې الرجي
د ډيرو معلوماتو لپاره Penicillin V ته مراجعه وکړئ. (۴۹ مخ)

---

**Ampicillin***

**ايمپيسلين**

*Tablets/ capsules*
*250 and 500 mg*
*Vials 500 mg and 1g*

**استطباب:** فمي استعمال: • د Amoxicillin په څير دی. او • Bacillary dysentery.

زرقـي (IM/IV): • Meningitis • Septicaemia او د نـوې زړيدلي شديد انتانات (يو ځای له Gentamicin سره ).

☜ د فمي استعمال لپاره ښه دا ده چې د ايمپيسيلين پر ځای Amoxicillin تجويز شي (د ښه جذب له خاطره). د خولې له لارې بايد ايمپيسلين يو ساعت له ډوډۍ مخکې وخوړل شي.

☜ د IM/IV استعمال لپاره دې بايد جوړ شوی محلول په ۱۲ ساعتو کې له جوړيدو وروسته استعمال شي.

**فمي** *(Oral)*

ماشومان (50-100 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو)

| | | |
|---|---|---|
| ۲ -۱۲ مياشتې | 125-250 mg | د ورځې درې ځله. |
| ۱- ۵ کالو | 250-500 mg | د ورځې درې ځله. |
| ٦- ۱۲ کالو | 500 mg | د ورځې درې ځله. |
| لويان | 500 mg-1g | د ورځې درې ځله. |

IM/IV

ماشومان (هغه انتانات چې وخيم نه وي ډوز لکه د فمي ډوز دی "50-100 mg/kg/day" په څلورو کسري ډوزونو). په وخيمو انتاناتو کې لکه Meningitis ډوز 200-400 mg/kg په درې يا څلورو کسري ډوزونو:

۲-۱۲ مياشتې 250-500 mg د ورځې درې يا څلور ځله
۱-۵ کالو 500 mg-1 g د ورځې درې يا څلور ځله
٦- ۱۲ کالو 1g د ورځې درې يا څلور ځله
لويان 1-2g د ورځې درې يا څلور ځله

**مضاد استطباب:** د Penicillin سره الرجي
د ډيرو معلوماتو لپاره Penicillin V ته مراجعه وکړئ.( ۹۴۹ مخ)

---

**Antacids**

**انټاسيد**

**د انټاسيد مثالونه:**
(Magnesium hydroxide*, Aluminium hydroxide*)
**مختلف مستحضرات او شکلونه يې پيدا کيږي.**

**استطباب:** • د Gastritis اعراض • Peptic قرحه

په هغو ناروغانو ې چې تر يوې اوونۍ په انټي اسيډو، نه ښه کيږي، Cimetidine ته ترجيح ورکول کيږي.

Oral

**لويان:** ۱-۲ ټابليټه ژويل کيږي اويا ۱-۲ کوچنی پاکټ (Sachets) يو ساعت وروسته له هرې ډوډۍ څخه.

**مضاد استطباب:** د پښتورګو وخيمي ناروغی.
**په بلاربښت او تي ورکولو کې:** مضاد استطباب نه دي.
**اړخيزې اغيزې:** Aluminium hydroxide : قبضيت.
د Magnesium hydroxide مستحضرات: نسناستی
**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** انټاسيډونه د څو ډوله درملو جذب کموي، نو له همدې کبله دې په يو وخت کې له نورو درملو سره نه تطبيقيږي هميشه بايد ۱- ۲ ساعته له نورو درملو نه بيل ورکړل شي (مخکې يا وروسته).

---

**Ascorbic Acid***
اسکوربيک اسيد
(Vitamin C)
ويټامين سي

*Tablets 50 and 250 mg*

Oral

**استطباب:** يوازينی استطباب د Vit.C فقدان دی، د والګې (Common cold) په درملنې کې اغيزمن نه دي.

**د Vit.C د فقدان درملنه** (Scurvy)
**ماشومان** 100 mg د ورځې درې ځله د دوه اوونيو لپاره
**لويان** 500 mg د ورځې درې ځله د دوه اوونيو لپاره
ښه زغمل کيږي.

---

**Aspirin** اسپرين

*Acetylsalicylic acid ته دې مراجعه وشي.

---

**Atenolol***
**اټينالول**

*Tablets 25,50 and 100 mg*

Oral

**استطباب:** • د وينې لوړ فشار • Angina او له Myocardial infarction څخه وروسته

**شرياني لوړ فشار**
**لويان:** 25-50 mg د ورځې يو ځل.
لوړ ډوز معمولاً ګومه ګټه نه کوي ډير لږ ناروغان 100 mg ته اړه لري.
Angina **او له** Myocardial infarction **وروسته وقايه**
**لويان** 100 mg د ورځې يو ځل، اوږده درملنه

**مضاد استطباب:** Asthma، د زړه عدم کفايه، د زړه ۲ او ۳ درجه بلاکونه (Block)، Bradycardia،په ډيابيت کې دې نه ورکول کيږي.
**په بلاربښت او تي ورکولو کې:** نه ورکول کيږي.
**اړخيزې اغيزې:** Bronchospasm, Bradycardia، د زړه عدم کفايه، د خوب ستونزې ګنګسي، Depression , په Diabetic ناروغانو کې Hypoglycaemia
**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** د وينې د فشار ضد نورو درملو سره د يو ځای کيدو په صورت کې، د دې درملو د وينې د فشار ضد اغيزه لوړوي. د زړه د بلاکونو له کبله هيڅکله له Calcium-channel blockers (Verapamil, Diltiazem) سره يو ځای استعمال نه شي.

**Benzathine benzylpenicillin***

## بینزاتین بنزایل پینیسلین

*Vials 2.4 M IU =1.44 g*

IM Only

**(یوازې عضلي)**

**استطباب:** •د پرله پسې Rheumatic fever وقایه • Streptococcal tonsillitis • سیفلیس.

☜ دا انتي بایوتیک اوږد تاثیر لري، نو له نورو انتاناتو لپاره غیر له هغو نه چې ذکر شول باید ترې استفاده و نه شي.

☜ هیڅوخت دې د ورید (IV) له لارې نه استعمالیږي.

**ماشومان:**

| | |
|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتې | 300,000 IU |
| ۱-۵ کالو | 600,000 IU |
| ٦- ۱۲ کالو | 1.2 million IU |

**لویان:** 2,4 million IU

**د Rheumatic fever د وقایې لپاره**

هر څلور اونۍ وروسته دې یو واحد ډوز ورکړل شي. ۹۰ مخ ته دې مراجعه وشي.

**حاد Streptococcal tonsillitis:**

یو واحد ډوز دې ورکړل شي.

**سیفلیس:**

یو واحد دوز دې ورکړل شي او وروسته له دوه اوونیو دې تکرار شي.

د الرجۍ د معلومولو لپاره د الرجۍ تست مه کوئ، Procaine benzylpenicillin ته مراجعه وکړئ (٥٦ مخ). د نورو معلوماتو لپاره Penicillin V ته مراجعه وکړئ. (۴۹ مخ)

---

**Benzylpenicillin***

بنزایل پنیسلین

(Penicillin G, crystalline penicillin)

(پنیسلین جي، کرسټالاین پینیسلین)

*Vials 1 and 5 M IU (1M IU= 600 mg)*

IV/ IM

**استطباب:**• حاد انتانات چې له پنسیلین سره حساس وي مثلاً: • شدیده Septicaemia• Pneumonia • شدید Endocarditis• Anthrax• Gonorrhoea (ډیر لوړ ډوز) Tetanus• Meningitis• Gas gangrene • ولادي سیفلیس.

☜ محلول باید تر ۲۴ ساعتو پورې له جوړیدو وروسته مصرف شي، او Infusion باید همیشه دفعتاً مخکې له استعمال نه تیار شي.

☜ له IV لارې د Infusion په شکل ډیر ورو په ۲۰ دقیقو کې دې تطبیق شي.

**ماشومان:** (100,000-200,000 IU/kg/day چې مساوي دی له 60-120 mg/kg/day په ۴- ٦ ویشل شوو ډوزونو. (Meningitis : 300,000 IU/kg/day

۲- ۱۲ میاشتې 200,000 - 400,000 IU (=120-240 mg) هر شپږ ساعت وروسته.

۱-۵ کالو 400,000 -750,000 IU
(450-240 mg =) هر شپږ ساعت وروسته.
۶-۱۲ کالو 750,000-1.5 million IU
(450-900 mg=) هر شپږ ساعت وروسته.
لويان: (600mg-2.4 g)1-4 million IU
هر شپږ ساعت وروسته.
د لويانو لپاره اعظمي لوړ ډوز: 20 million IU په ورځ کې
د الرجی د معلوملو لپاره د الرجی تست مه کوئ، Procaine benzylpenicillin ته مراجعه وکړئ (۵۶ مخ).
د نورو معلوماتو لپاره Penicillin V ته مراجعه وکړئ.(۴۹ مخ)

---

**Cefotaxime**

**کيفوټاکسيم**

دا د دريم جنريشن Cephalosporin د اساسي درملو په لست کې شامل نه دی. دا ډير ګران درمل دي، کيدای شي اکثر انتانات په نورو درملو چې ممکن ډير ارزان وي تداوي شي.

---

**Cephalexin**

**کيفاليکسين**

دا د Cephalosporin لومړی جنريشن د اساسي درملو په لست کې شامل نه دی، دا ډيرګران بيه درمل دي او اکثراً مقايستاً له نورو درملو څخه لکه Co-trimoxazole، Ampicillin, Amoxicillin کوم ځانګړی ښه والی نه لري.

---

**Chloramphenicol***

**کلورامفينيکال**

*Tablets/capsules 250 mg*
*Syrup 125 mg/5 ml*
*Vials 1g*

استطباب: • وخيم انتانات لکه وچکی يا محرقه، ډيره شديده Acute epiglottitis• Meningitis • Pneumonia

- ☜ يوازې د ژوند تهديد کوونکو انتاناتو لپاره دې تجويز شي.
- ☜ د يو مياشتې کم عمراه نوو زيږيدلو ته دې نه ورکول کيږي.
- ☜ پرته د وچکيو له پيښو څخه له ۱۰ ورځو نه د ډير وخت لپاره دې نه ورکول کيږي.
- ☜ جوړ شوی محلول بايد په ۲۴ ساعتو کې مصرف شي.
- ☜ هر څومره چې زر ممکن وي په فمي لارې دې تبديل شي. د درملو اغيزه د خولې او زرقي لارې يو شان ده.

**Oral(فمي)**

ماشومان (50 mg/kg/day په ۳ يا ۴ کسري ډوزونو، په وخيمو انتاناتو کې کولی شئ لوړ ډوز "100 mg/kg/day" پيل کړئ، چې دوه ورځې وروسته بايد ډوز کم کړئ.)
۲-۱۲مياشتو 62.5-125 mg د ورځې درې کرته
۱-۵ کالو 125- 250 mg د ورځې درې کرته
۶-۱۲ کالو 500 mg د ورځې درې کرته

IM/ IV

لویان 750 mg د ورځې درې کرته

IM او IV ډوزونه د فمي ډوز سره مساوي دي

**مضاد استطباب:** د هغو انتاناتو لپاره چې وخیم نه وي باید تجویز نه شي.
په هغه ماشومانو کې چې عمر یې له یوې میاشتې کم وي (نوي زیږدلي) مضاد استطباب دي، د Grey syndrome خطر (collapse او د ماشوم مړینه د کلورامفینیکول د نه میتابولایز کیدو له کبله) له پرله پسې ډوزونو څخه دې ځان وساتل شي ځکه چې د Aplastic anaemia خطر زیاتوي.

**بلاربښت:** ځان دې وساتل شي، د بلاربښت په درې وروستیو میاشتو کې مضاد استطباب دي.

**په تي ورکولو کې:** مضاد استطباب دي، په هغو ماشومان کې چې تی روي په ماشوم کې د شدید تسمم امکان موجود دی.

**اړخیزې اغیزې:** د وینې ستونزې، د Irreversible aplastic anaemia په شمول، چې ممکن د مړینې سبب شي، هغه ناروغان چې کلورامفینیکال اخلي په 25000 پېښو کې یې یوه پېښه لیدل کیږي. په هغه صورت کې چې وینه لږي (Anaemia) ډېره شي درمل سمدلاسه قطع کړئ.
نور: کانګې، نسناستی، سرخوږ.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** که قطعي استطباب موجود نه وي، له نورو انټي بایوتیکو سره یې یو ځای مه استعمالوئ.

---

## Chloroquine*

## کلوروکوین

*Tablets 100 mg base*
*(=150 mg phosphate)*
*Tablets 150 mg base*
*(=250 mg phasphate)*
Oral

**استطباب:** • د ملاریا درملنه او مخنیوی• وخیم Rheumatoid arthritis.

☜ لوړ ډوزونه چې په هدایت کې نه وي مه تجویزوئ. په ماشومانو کې توکسیک ډوز 25 mg/kg دی.

☜ په ماشومانو کې د کلوروکین عضلي زرقیات (IM) مه تطبیقوئ، ممکن د هغوی د مړینې سبب شي.

**د ملاریا د درملنې کورس** (درمل د Chloroquine base د مقدار په اساس تجویز کیږي) د ورځې یو ډوز د درې ورځو لپاره تجویز کړئ. په دوه لومړیو ورځو کې 10 mg/kg،او په دریمه ورځ 5 mg/kg چې د لومړنیو ډوزونو نیم ډوز کیږي.

**مړی او دویمه ورځ:**

**ماشومان**

| | |
|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتیني | 50-75 mg base |
| ۱-۵ کلن | 150 mg base |
| ٦-۱۲ کلن | 300 mg base |
| **لویان** | 600 mg base |

**دریمه ورځ:**

**ماشومان**

| | |
|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتیني | 37.5-50 mg base |
| ۱-۵ کلن | 75-100 mg base |

٦-١٢ کلن 150 mg base

لويان 300 mg base

که ناروغ له کلوروکين خوړو وروسته تر ۳۰ دقيقو پورې کانګې وکړي، بيا بشپړ ډوز ورکړئ، که ناروغ له درملو وروسته نيم نه تر يو ساعت پورې کانګې وکړي، بيا ورته د درملو نيم ډوز ورکړئ.

په Rheumatoid arthritis کې

کوچنيان او لويان

ډوز دقيقاً وسنجوئ. ماشومان او لويان Chloroquine base 2.5 mg/kg/day د ناروغۍ اصلاح درې مياشتې وروسته مشاهده کولای شئ، که له شپږو مياشتو وروسته يې اغيزه جوته نه شوه، درمل قطع کړئ.

**مضاد استطباب:** له هغو درملو سره چې ينې ته ټوکسيک وي، بايد يو ځای استعمال نه شي.

**بلاربښت:** مضاد استطباب نه دي د Rheumatoid arthritis د اوږد کورس درملنې له کبله، بايد د بلاربښت په وخت کې يې درملنه اجرا نه شي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** معدي معايي تشوشات، سرخوږی، چاړان يا اختلاجات، د وينې د فشار ټيټوالی.

نادراً: د وينې ستونزې، د لوړ ډوز په اوږده درملنه کې د Retinopathy خطر موجود دی.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** له نورو درملو سره دې يو ځای ورنکړل شي، ځکه چې د نورو درملو جذب کموي، بناً يو يا دوه ساعته دې له نورو درملو مخکې اويا وروسته ورکړل شي. د صرعې ضد درملو اغيزه کموي، ممکن د چاړان يا اختلاجاتو د حملو د زياتيدو سبب شي.

---

**Chlorphenamine***

کلور فين امين

(Chlorpheniramine)

کلور فينر امين

*Tablets 4 mg, Ampoules of 1ml*

**استطباب:** الرجيک عکس العملونه (جلدي رشونه، Urticaria، Hay fever)، خارښت.

☜ د Promethazine په څير د کانګو ضد اغيزه نه لري.

☜ د خوب وړلو سبب کيږي، ډرايورانو ته په دې اړه ووايئ.

☜ له يو کال نه کم عمره ماشومانو کې دې نه توصيه کيږي.

**Oral**

ماشومان

١-٥ کالو 1mg د ورځې درې ځلې

٦-١٢ کالو 2 mg د ورځې درې ځلې

لويان 4 mg د ورځې درې ځلې

زرقيات دې يوازې په وخيمو الرجيکو عکس العملونو کې تجويز شي.

**IM/IV/SC**

يو واحد زرق اجراً او وروسته درملنه د خولې له لارې پيل کړئ. که د وريد يا IV لارې تجويزيږي، زرق د يوې دقيقې په اوږدو کې اجراً شي. په الرجيک شاک کې Adrenaline او Corticosteroid له دې ښه دي.

ماشومان

۱-۵ کالو 2.5-5 mg یو واحد تحت الجلدی ډوز، نه وریدی یا عضلي.

۶-۱۲ کالو 5-10 mg یو واحد ډوز

لویان 10-20 mg یو واحد ډوز

**مضاد استطباب:** له یو کال نه کم عمره ماشومانو کې مضاد استطباب دي، د ینې په ناروغیو، Epilepsy ,Glaucoma ,Prostatic hypertrophy کې دې ترې ځان وساتل شي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په لومړیو دریو میاشتو کې دې ترې ځان وساتل شي.

**د تي ورکول په وخت کې:** له پرله پسې ډوزونو دې ځان وساتل شي.

**اړخیزې اغیزې:** ګنګسیت، توازن ګډوډوي، د ډرایورۍ په وخت کې ممکن د ستونزو سبب شي. سرخوږ، د خولې وچیدل.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** که له نورو ارام راوستونکو درملو (Sedative) سره یو ځای استعمال Sedation ډیروي.
(Phenobarbital, Diazepam, Chlorpromazine)

---

**Chlorpromazine***

## کلور پرو مازین

*Tablets 25,50,100 mg*
*Syrup 25 mg /5ml*
*Ampoules of 2 ml*
چې 50 mg لري.
(=25 mg/ml)

Oral

**استطباب:** • حاد Psychosis له Agitation سره • ځنډنی Psychosis • Schizophrenia • برساماٰت • هغه ناروغان چې نور وهي • ډیرې شدیدې کانګې.

Psychosis

ماشومان

۶-۱۲ کالو د لویانو نیم ډوز تجویز کړئ.

**لویان** 25 mg د ورځې درې ځله

**او یا** 75 mg یو ځل د شپې له طرفه

له دریئمې ورځې وروسته ډوز لوړ کړئ تر څو ناروغ ارام او مرسته وکړي.

د لویانو اعظمي ډوز: 600 mg

### ډیرې شدیدې کانګې

یوازې په هغو پېښو کې چې له نورو درملو سره ځواب ونه وایي. که ممکن وي د خولې له لارې دې ورکړل شي، غیر له هغې نه عضلي.

ماشومان

۱-۵ کالو 0.5 mg /kg د ورځې تر څلورو ځلو لپاره. (دقیقاً دې وسنجول شي)

۶-۱۲ کالو 12.5 mg د ورځې تر ۴ ځلو

IM

لویان 25 mg د ورځې تر ۴ ځلو

د سایکوتیکو وخیمو اعراضو د سملاسي کنترولو لپاره

لویان 25 mg واحد ډوز

که اړتیا وي یو ساعت وروسته دې تکرار شي.

**مضاد استطباب:** د Parkinson په ناروغۍ کې مضاد استطباب دی. د ینې او پښتورګو په ناروغیو کې دې په احتیاط تطبیق شي ( د Overdose خطر)

**بلاربښت:** د بلاربښت په وروستیو درې میاشتو کې دې نه تطبیقیږي، د Psychosis په صورت کې دې د لنګون د متوقعه وخت څخه یوه اوونۍ مخکې قطع شي او له لنګون وروسته دې سمدلاسه پیل شي.

**د تی ورکولو په وخت کې:** ځان دې ترې وساتل شي.

**اړخیزې اغیزې:** خوب وړل، Postural hypotension (د عضلي زرقیاتو په صورت کې دې ناروغ له زرق وروسته د دیرشو دقیقو لپاره پریوتلی وساتل شي)، زیړی، د وینې ستونزې (Agranulocytosis)،

Extrapyramidal اعراض: لړزه، د بدن او مخ غیر طبیعي حرکات (Dystonia)، نارامي.

نادر: خبیثNeuroleptic سندروم، که ناروغ ته تبه پیدا شي، درمل سمدلاسه قطع کړئ.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** که د وینې د فشار ضد درملو سره یو ځای تجویز شي، Hypotensive اغیزې یې لوړیږي. که د ارام راوستونکو درملو سره یو ځای تطبیق شي د هغې د Sedation اغیزه ډیروي مثلاً Phenobarbital, Diazepam, Chlorphenamine. له Metoclopramide سره یې Extrapyramidal اغیزه ډیریږي.

---

## Cimetidine*

## سایمیتډین

*Tablets 200 , 400mg*

Oral

**استطباب:** • د Peptic ټپونو درملنه او مخنیوی

• Reflux oesophagitis

لویان 400 mg د ورځې دوه ځله

او یا 800mg د ورځې یو ځل د خوب په وخت کې

Peptic ټپونه لږترلږه د څلورو اوونیو لپاره تداوي کړئ.

د مخنیوي لپاره یوازې 400 mg د شپې له طرفه تجویز کړئ.

**مضاد استطباب:** مضاد استطباب نه لري.

**بلاربښت:** د بلاربښت په لومړیو درې میاشتو کې دې ترې ځان وساتل شي.

**د تی ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دی.

**اړخیزې اغیزې:** نادر: د تغوط عادت ته تغیر ورکوي، ګنګسیت، رش او ستړیا.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** که امکان ولري له نورو درملو سره یو ځای ورکولو څخه دې ځان وساتل شي، څرنګه چې له نورو درملو سره یې یوځایي اغیزې ډیرې زیاتې دي. سیمیتدین د Aminophylline، Diazepam, Nifedipine , Phenytoin او Theophylline اغیزې ډیروي.

**Ciprofloxacin***
سيپروفلوكساسين
*Tablets 250, 500mg*
Oral

**استطباب:** قيمتي او Reserve يا ذخيره درمل دي (د"دريم خط" انتي بايوتيک) دي. يوازې دې په وخيمو نـاروغيو کـې ورکـړل شـي مـثلاً • وخيمـي وچکـی (محرقـه) • د بـولې لارې وخـيم انتانـات • Gonorrhoea • وخيمه Bacillary dysentery په هغـه صـورت کې چې له نورو درملو سره ځواب ونه وايي او له نورو درملـو سـره د مقاومت امکان موجود وي.

- په روتين ډول دې د لومړي غوره انتـي بايوتيـک پـه ځـير نـه ورکول کيږي.
- د بلاربښت (حمل) په وخت کې دې نه ورکول کيږي.
- له ۱۲ کالو کم عمره ماشومانو کـې دې نـه ورکـول کيـږي، پـه استثنا له شديدې وچکی (محرقې) څخه چـې لـه نـورو درملـو سره مقاومت ولري.

**(ماشومان** 7.5-15 mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو)
**لويان** 250- 750 mg د ورځې دوه ځله

**مضاد استطباب:** د صرعې (مرګي) درلودونکو ناروغانو کې دې په احتياط تجويز شي. له ۱۲ کالو کـم عمره ماشومانو کې دې نه ورکول کيږي.
**بلاربښت:** مضاد استطباب دي.
**د تي ورکولو په وخت کې:** ځان دې ترې وساتل شي.
**اړخيزې اغيزې:** خوابدي، کانګې، نسناستي، د ګيډې دردونـه، سـرخوږی، ګنګسيت، تبـه، د وينـې ستونزې او د بندونو دردونه، د ينې د انزايمونو ستونزې، چاړان (اختلاجات).
**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** په يو وخت دې له Antacid سره نـه ورکـول کيـږي ځکـه چې د دې درملو جذب کموي. له Aminophylline سره دې يو ځای ور نه کړل شي، ځکه د امينو فيلينــو د تســمم خطـر موجــود دی. د خــولې لــه لارې د خــوږې د ناروغــی اغيــزه ډيــروي. (مــثلاً Glibenclamide)

---

**Clioquinol**
کلايوكينول

- هيڅوخت يې مه استعمالوئ، د ممکنه Neurotoxicity لـه کبله، ډير خطرناک دي.

---

**Clomifene***
کليمافين

- يوازې متخصصين دې استعمال کـړي. يـوازې پـه هغـه شنډتوب (Infertility) کې چې د Anovulation له کبله مـنځ ته راغلی وي، استعماليدی شي، نه د شـنډتوب پـه نـورو ډولونـو کې. د غلط استعمال په صورت کـې، د خطرنـاکو اړخيـزو اغيـزو سبب کيدای شي مثلاً Ectopic pregnancy اويا د تخمدانونو Hyperstimulation.

---

**Cloxacillin***
کلوکساسيلين
*Capsules*

**استطباب:** •هغه انتانات چې Staphylococcus له کبله منځ ته راغلي وي، مثلاً د جلد، هډوکو (Osteomyelitis) او بندونو انتانات (Septic arthritis), Mastitis، Staphylococcus

*250,500 mg*
غالباً له Ampicillin سره په ترکیبي شکل پیدا کیږي (= Ampiclox) ایمپیکلاکس

نمونیا او Septicaemia

☜ باید یو ساعت له خوړو مخکې واخستل شي.

Oral

ماشومان (50 –100mg/kg/day په ۳-۴ کسري ډوزونو)

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتینی | 125 mg | د ورځې درې ځله |
| ۱- ۵ کالو | 250 mg | د ورځې درې ځله |
| ٦- ۱۲ کالو | 250-500 mg | د ورځې درې ځله |
| لویان | 500 mg-1g | د ورځې درې ځله |

په وخیمو انتاناتو کې پاسني ډوزونه دوه چنده (double) کولای شئ.

د ډیرو معلوماتو لپاره Penicillin V ته مراجعه وکړئ (۴۹ مخ).

**Codeine***

کوأین

*Tablets 30 mg*

استطباب: • متوسط دردونه

☜ هیڅوخت دې د ټوخي د ارامولو لپاره په تنفسي انتاناتو کې نه ورکول کیږي. ټوخی یو میخانیکیت دی چې د هغې په وسیله تنفسي افرازات تخلیه کیږي. که کوډین تجویز شي، ممکن د ناروغی د وخامت سبب شي، له همدې کبله هغه مستحضرات چې کوډین ولري هیڅوخت باید استعمال نه شي، یوازې په هغه حالاتو کې تجویزیږي که ټوخی د میخانیکي یا کیمیاوي تخریشاتو له کبله منځ ته راغلی وي.

☜ له یو کال نه کم عمره ماشومانو ته یې مه ورکوئ.

☜ د ډیر وخت لپاره یې مه توصیه کوئ، ممکن د اعتیاد سبب شي.

Oral

ماشومان

| | | |
|---|---|---|
| ۱-۵ کالو | 7.5 mg | د ورځې درې ځله |
| ٦-۱۲ کالو | 15 mg | د ورځې ۳-۴ ځلې |
| لویان | 30 mg | د ورځې ۳-۴ ځلې |

**مضاد استطباب:** حاده استما، د تنفسي لارو ځنډنۍ انسدادي ناروغۍ، د درملو د اعتیاد تاریخچه.

**بلاربښت:** د اوږد وخت لپاره دې نه تجويزيږي، د بلاربښت په وروستيو مياشتو او د لنګون (ولادت) پـه وخت کې دې نه تجويزيږئ، ممکن د نوي زيږيدلي د تنفسي Depression او په هغو ميندو کـې چـې دا يې د ډير وخت لپاره اخيستي وي د Withdrawl اعراضو د رامنځ ته کيدو سبب شي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** اړخيزې اغيزې په ماشومانو کې ډيرې وخيمې وي، ، خوابدي،ګنګسيت، کانګې، قبضيت، روږديتوب (اعتياد). د ډرايورۍ په قوه بده اغيزه کوي.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** که له نورو Sedative درملو سره يو ځای ورکړل شي، د هغوی Sedation اغيزه لوړوي.

---

**Co-trimoxazole***

# کوټرای موکسازول

(Sulfamethoxazole +trimethoprim)

*Tablets 120,240, 480 mg*
*Syrup 240 mg / 5ml*

**استطباب:** • تنفسي انتانات: Pneumonia, د منځني غوږ التهابونه، Pneumocystis carinii ، Sinusitis

• معدي معايي انتانات: Bacillary dysentery (لومړی غوره انټـی بايوټيک)، وچکۍ (محرقه).

• د بولي لارو انتانات.

• هغه ناروغۍ چې له جنسي نږديوالي څخه منځ ته راځي: Chancroid, Lymphogranuloma inguinale Gonorhoea,

• نور: Brucellosis

☜ د بلاربښت په وروستيو وختونو کې او له شپږو اوونيو کـم عمـره ماشومانو ته دې نه تجويزيږي.

Oral

**ماشومان** (48 mg /kg/day په دوه کسري ډوزونو)

| | |
|---|---|
| له ٦ اوونيو تر ١٢ مياشتو | 120 mg د ورځې دوه ځلې |
| ١-٥ کالو | 240 mg د ورځې دوه ځلې |
| ٦-١٢ کالو | 480 mg د ورځې دوه ځلې |
| **لويان** | 960 mg د ورځې دوه ځلې |

په وخيمو انتانونو کې ذکر شوی ډوز درې کرته هم ورکولی شئ.

**په نمونيا او نورو حادو تنفسي انتاناتو کې**

له ٥ کالو کم عمره ماشومانو کې ډوز دوه چنده کړئ.

**مضاد استطباب:** له شپږ اوونيو کوچنيو ماشومانو کې چې که زيړی ولري او يا مخکې له وخت نه زيږيدلي وي مضاد استطباب دي. د پښتورګي، ينې په بې کفايتی يا عدم کفايه، زيړي او د وينې په تشوشاتو کې مضاد استطباب دي.

**بلاربښت:** ځان دې ترې وساتل شي، د بلاربښت په وروستی مياشت کې دې نه تجويز کيږي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** هغه ميندو ته دې چې نوي زيږيدلي ماشومان يې زيړی ولري، نه ورکول کيږي.

**اړخيزې اغيزې:** نساستی، خوابدي، کانګې، جلدي رش (Co-trimoxazole سمدلاسه قطع کړئ) د وينې تشوشات (د Agranulocytosis په شمول) د G6PD په نشتوالي کې هيمولايزس

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** له نورو انتي بايوتيکو سره دې يو ځای نه ورکول کيږي، د فمي Anti-diabitic درملو او Phenytoin اغيزې ډيروي.

---

**Dexamethasone***

ډيکساميتازون

*Ampoules 1 ml*

چې 4 mg لري.

**استطباب:** • د شديدو Allergic عکس العملونو بيړنی درملنه • د استما شديدې حملې • د پاسنيو تنفسي لارو شديد انسداد • وخيمې وچکی (محرقه) چې Shock يا Confusion ورسره وي.

**يادونه:** د 0.75 mg Dexamethasone اغيزه يا تاثير د 20 mg Hydrocortisone او يا 5mg Prednisolone سره برابر دی.

☜ يوازې دې د بيړنيو يا عاجلو پېښو لپاره ترې استفاده وشي، هغه پېښې چې عاجلې نه وي له Prednisolone څخه دې استفاده وشي.

IV / (IM)

ماشومان (0.2-0.5 mg/kg/day)

| | | |
|---|---|---|
| له ٦ کالو کوچني | 2-4 mg | يو واحد ډوز |
| ٦ - ١٢ کالو | 4-8 mg | يو واحد ډوز |
| لويان | 4-12 mg | يو واحد ډوز |

که ضرورت وي ډوز وروسته له ٦-٨ ساعته تکرارولای شئ، څومره چې ژر کېږي زرقي ډوز د Prednisolone په فمي ډوز بدل کړئ.

د ډيرو معلوماتو لپاره Prednisolone ته مراجعه وکړئ. (۵۴ مخ)

---

**Dextrose***

ډيکستروز

Glucose ته مراجعه وکړئ.

---

**Diazepam***

ډيازيپم

*Tablets 5,10 mg*

*Ampoules 2 ml*

چې د *(=5 mg/ml) 10 mg* درلودونکي دي.

**استطباب:** • دچاړان يا اختلاج د توقف لپار •د Anxiety لنډه درملنه • عضلي تشنجات ( د Tetanus په شمول) • د عملياتو لپاره چمتو کولو لپاره يا Preoperative sedation.

☜ له دوه اوونيو نه ډير وخت لپاره دې نه تجويز کېږي.

Oral

ماشومان (0.2 mg/kg/day دوه کسري ډوزونه يا د شپې يو ځلې)

۱-۵ کالو 1.25-2.5 mg د ورځې دوه ځلې او يا د شپې يو ځل.
۶-۱۲ کالو 2.5-5 mg د ورځې دوه ځلې او يا د شپې يو ځل
IV/ Rectal (مقعدی) لويان: 2.5-10 mg د ورځې درې ځلې او يا د شپې يو ځل

**د چاړان يا اختلاج د توقف لپاره**

د هغې مقعدي تطبيق لکه IV چټکه اغيزه لري، د يو بې ستنې سرنج په وسيله دې د مقعد له لارې تطبيق شي.
د شين رګې يا وريد له لارې دې ډير ورو په ۴ دقيقو کې د تنفسي Depression له خاطره تطبيق شي.

ماشومان (0.25-0.5 mg/kg يو واحد ډوز)
۲-۱۲ مياشتو 2.5-5 mg
۱- ۳ کالو 5 mg
۴-۱۲ کالو 10 mg
لويان 10-20 mg

که چاړان يا اختلاج دوام پيدا کړي، ډوز وروسته له ۱۰ دقيقو بيا تکرار کړئ.

**مضاد استطباب:** د تنفسي انحطاط په صورت کې مضاد استطباب دي. د ينې په وخيمو ناروغيو Glaucoma، او د درملو د سؤستعمال د تاريخچې په صورت کې دي ترې اجتناب وشي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په دريو وروستيو مياشتو کې مخصوصاً مخکې له لنګون څخه دې نه استعماليږي، د تنفسي انحطاط، ګنګسيت او د نوي زيږيدلي د Hypotonia سبب کيږي او همدا راز هغو ميرمنو چې دا د زيات وخت لپاره استعمال کړي وي، په نووزيږيدلو ماشومانو کې يې د درملو د قطع کولو د اعراضو د مينځ ته راوړلو سبب کيږي. ( له ۱۲ ورځو څخه ډير )

**د تي ورکولو په وخت کې:** د ډير وخت لپاره دې نه تجويزيږي.

**اړخيزې اغيزې :** خوب وړل چې په ډرايورۍ کې ستونزې پيدا کوي، Confusion، د ډير استعمال په صورت کې د روږديتوب (اعيتاد) سبب کيدای شي (له ۱۲ ورځو څخه ډير) تنفسي انحطاط د وريدي زرق په صورت کې ډير واقع کيدلای شي.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** که د Sedation له نورو درملو سره ( لکه Phenobarbital ،Chlorphenamine, Chlorpromazine)يو ځای ورکړل شي د هغوی د Sedative اغيزې ډيروي.

---

**Digoxin***

ډاجاکسين

*Tablets 0.5 mg (=250 microgram)*

**استطباب:** • د زړه احتقانی عدم کفايه، •Sinus arrhythmia (Sinus tachycardia, Atrial fibrillation) .

☜ هغه وخت يې تجويز کړئ، چې تاسو د هغې په استطباب بالکل ډاډه ياست.

☜ د Overdose نښو ته مو پام وي. د تسمم خطر په (Low potassium) Hypokalaemia کې ډير دی:

مخنۍ(مقدمې) نښې: د زړه بدوالی، کانګې، د اشتها سقوط.

Oral

وروستنۍ نښې: د ليدلو ستونزې، Confusion اريتميا، AV-Block

نارمل Digitalisation

ماشومان

0.01 mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو
(=10 microgram /kg/day)
د ماشومانو اعظمي ډوز 0.25 mg/day
(=250 microgram/day)

لويان

0.125-0.5mg (=125-500 microgram) د ورځې يو ځل، کـه ورځنی ډوز له 0.25 mg (250 microgram) څخه ډيـر وي پـه دوه کسري ډوزونو دې تجويز شي.

سريع يا چټک Digitalisation

که بيړني يـا عاجـل Response تـه اړه وي او نـاروغ پـه وروسـتۍ اوونۍ کې Digoxin نه وي اخيستي:

ماشومان

0.04 mg/kg/day (=40 microgram/kg/day) پـه څلـورو کسري ډوزونو يوازې د يوې ورځې لپـاره يـې ورکـړئ، وروسـته لکـه نارمل Digitalisation دوام ورکړئ.

لويان

0.5mg (500 microgram) د ورځې درې ځلـه، يـوازې د يـوې ورځې لپاره يې ورکړئ. وروسـته لکـه نارمـل Digitalisation دوام ورکړئ.

ډير چټک يا سريع Digitalisation

ډير چټک Digitalisation اکثراً د IV لارې تجويزيږي.

**مضاد اسـتطباب:** Bradycardia ( لـه 60/min څخـه ټيټ نـبض)،غـير واضـح Arrhythmia ، Hypokalaemia او يا Hyperkalaemia.

**بلاربښت:** مضاد استطباب وجود نه لري.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب وجود نه لري.

**اړخيزې اغيزې:** د درملنې ډوز سمي ډوز ته ډير نژدې دی، د غلط استطباب او غلط ډوز په صورت کـې د مړينې سبب کيدلای شي.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيـزې:** Quinine او Chloroquine پـه پلازمـا کـې د Digoxin سويه لوړوي. که کلوروکين توصيه کـوئ، د Digoxin تعقيبيـه ډوز نـيم کـړئ. Diuretic د هغـې د Hypokalaemia خطر او سمي اغيزه لوړوي.

**Diloxanide*** **استطباب:** • د Amoebic cysts له منځه وړل

ډیلاکسانایډ
*Tablets 500 mg*
غالباً د Metronidazole
په ترکیبي ډول پیدا کیږي.

Oral

**ماشومان** 20 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو
**لویان** 500 mg د ورځې درې ځله
درملنه معمولاً د ۱۰ ورځو لپاره

**مضاد استطباب:** مضاد استطباب نشته.

**اړخیزې اغیزې:** نفخ او باد، کانګې، خارښت.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** کوم مهم دوایي تعامل منځ ته نه راوړي.

---

**Doxycycline***
ډوکسي سایکلین
*Tablets/Capsules 100 mg*

**استطباب:** •ځنډنی معند Bronchitis • Sinusitis • Mycoplasma pneumonia •د حوصلې التهابي ناروغۍ • Unspecific urethritis •برو سیلوزس • کولرا • Acne •د Chlamydiaانتانات • Gonorrhoea • • سیفلس، په هغه صورت کې چې ناروغ له پنسلین سره حساسیت ولري اویا ناروغي له پنسلینو سره مقاومه وي.

☜ د بلاربښت په جریان کې او په هغو ماشومانو کې چې عمر یې له اتو کالو کم وي مه یې تجویزوئ.

☜ له شیدو او انتاسیدو سره یې یو ځای مه ورکوئ.

☜ په یخ او وچ ځای کې یې وساتئ.

☜ هغه ناروغ چې Phenobarbital, Rifampicin او یا Phenytoin اخلي، ډوز دوه چنده (Double) کړئ.

Oral

**لویان** 100 mg د ورځې یو ځل
**په لومړۍ ورځ کې** 100 mg دوه ځله تجویز کړئ.

**د حوصلې التهابي ناروغي یا** Pelvic Inflammatory Disease (PID) او Chlamydia

**لویان** 100 mg د ورځې دوه ځله، په PID کې د ۱۰ ورځو لپاره د Metronidazole سره دې یو ځای تجویز شي.

Acne
**لویان** 50 mg د ورځې یو ځل د درې میاشتو لپاره

Brucellosis
**لویان** 200 mg د ورځې یو ځل د ۶-۱۲ اوونیو لپاره، په لومړیو درې اوونیو کې دې Streptomycin هم ورسره یو ځای شي.

**مضاد استطباب:** له اتو کالو کم عمره ماشومانو او بلاربښت په بهير کې مضاد استطباب دي، د پښتورګي په عدم کفايهٔ کې دې Tetracycline ورکړل شي، Doxycycline د ينې په ناروغيو کې نه ورکول کيږي.

**بلاربښت:** مضاد استطباب دي، د نوي زيږيدلي سکليټ او وده باندې اغيزه کوي، او وروسته د غاښونو د رنګه کيدو سبب کيږي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب دي..

**اړخيزې اغيزې:** نسناستی، د زړه بدوالی، کانګې، سرخوږ، د ليدلو ستونزې.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** که واضع استطباب يې نه وي موجود، له نورو انتي بايوتيکو سره يې يو ځای مه تجويزوئ. انټاسيد، شيده او اوسپنه يې جذب کموي، يو يا دوه ساعته مخکې يا وروسته له Doxycycline يې تجويز کړئ. د Doxycycline اغيزې په هغو ناروغانو کې چې Carbamazepine, Rifampicin Phenobarbital يا Phenytoin اخلي زيانمنيږي.

---

## Ephedrine

ايفي ډرين

*Tablets 30 mg*

Oral

**استطباب:** • Asthma

☜ يوازې په هغو پېښو کې دې تجويز شي چې د استما ضد نور درمل وجود و نه لري.

**ماشومان**

| | |
|---|---|
| ۱-۵ کالو | 7.5 –15 mg د ورځې درې ځلې |
| ۶-۱۲ کالو | 15-30 mg د ورځې درې ځلې |
| **لويان** | 30-60 mg د ورځې درې ځلې |

**مضاد استطباب:** د Diabetes mellitus، Ischaemic heart disease (Angina)، د وينې د لوړ فشار، بوډاګانو، Hyperthyroidism او د پښتورګو د عدم کفايي په ناروغانو کې دې په احتياط تطبيق شي.

**بلاربښت:** مضاد استطباب دي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** د دې له استعمال نه دې ځان وساتل شي، ځکه چې د ماشوم د تخريش سبب کيږي.

**اړخيزې اغيزې:** د اعيتاد خطر، Tachycardia، اضطراب، نارامي، د خوب ستونزې (Insomnia).

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** له Beta-blocker ( د مثال په ډول Atenolol يا Propranolol) سره دې يو ځای نه ورکول کيږي.

---

## Epinephrine*

اپيي نفرين

Adrenaline ته دې مراجعه وشي. (۱۱ مخ)

---

## Ergometrine*

ارګوميترين

*Ampoules 1 ml (=0.5 mg/ml)*

**استطباب:** • له لنګون او سقط وروسته د وينې تويدنو (خونريزی) درملنه او مخنيوی.

يادوونه: د زيلانځ (رحم) د تقبض سبب کيږي.

☜ هيڅوخت دې د لنګون په وخت کې يا د پيروان (پلاسنتا) له راوتلو مخکې ور نه کړل شي.

- د میاشتني عادت د وینې تویدونو په ستونزو کې نه تجویزیږي.
- د امکان په صورت کې دې امپولونه په یخچال کې وساتل شي.
- د محلول رنګ چې معمولاً سپین/ګلابي وي که رنګ یې زیړ/شین شوی وي مه استعمالوئ.

IM/IV
لویان: 0.5 mg عضلی اویا 0.2- 0.5 mg وریدي
د ضرورت په وخت کې دې دوه ساعته وروسته بیا زرق شي.

**مضاد استطباب:** د لنګون په وخت کې، د پیروان (پلاسنتا) د بشپړ خارجدو مخکې، د وینې وخیم لوړ فشار او د زړه په ناروغیو مضاد استطباب دي.

**بلاربښت:** مضاد استطباب دي.

**د تي ورکول په بهیر کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخیزې اغیزې:** د زړه بدوالی، کانګې، ګنګسیت، د ګیډې دردونه، سرخوږی، د زړه ټکان، د وینې د فشار موقتي لوړیدل ، عسرت تنفس.

**له نورو درملو سره یوځای اغیزې:** له نورو درملو سره کوم مهم دوایي تعامل منځ ته نه راوړي.

---

**Erythromycin***
ایریترومایسین

*Tablets 250 and 500 mg*
*Syrup 125 mg/5 ml*

**استطباب:** • Pneumonia (مخصوصاً Atypical pneumonia د Mycoplasma په شمول) • توره ټوخلې • Acne • د هغه نوي زیږیدلي ماشوم Conjunctivitis چې د Chlamydia له کبله منځ ته راغلی وي. • Tonsillitis او جلدي انتانات (دویم غوره انتي بایوتیک) •د پنسلین الترناتیف په هغه صورت کې چې له Penicillin سره حساسیت موجود وي.

Oral

ماشومان (25-45 mg/kg/day په دوه یا درې کسري ډوزونو)

| | |
|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتو | 125 mg د ورځې دوه ځلې |
| ۱-۵ کالو | 250 mg د ورځې دوه ځلې |
| ۶-۱۲کالو | 500 mg د ورځې دوه ځلې |
| لویان | 500 mg-1g د ورځې دوه ځلې |
| او یا | 500 mg د ورځې درې ځلې |

د درملنې دوام معمولاً ۵-۷ ورځو پورې، په هغه Conjunctivitis کې چې د Chlamydia له کبله منځ ته راغلی وي درملنې تـه دې تر دوه اوونیو ادامه ورکړل شي. په Mycoplasma pneumonia, Tonsillitis او توره ټوخله کې درملنه د ۱۰ ورځو لپاره.

د Rheumatic fever د مخنیوي لپاره

ماشومان

| | |
|---|---|
| له ۵ کالو کم عمره | 125 mg د ورځې دوه ځلې |
| له ۵ کالو لوړ | 250 mg د ورځې دوه ځلې |
| لویان | 250 mg د ورځې دوه ځلې |

**مضاد استطباب:** د ينې په ناروغيو کې مضاد استطباب دي.

**بلاربښت او د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** د زړه بدوالى، کانګې، د ګيډې دردونه، نسناستى، جلدي اندفاعات.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** له نورو انټي بايوټيکو سره چې واضح استطباب يې نه وي موجود يو ځاى يې مه تطبيقوئ. له Aminophylline او يا Carbamazepine سره چې د هغوى سميت ډير وي يو ځاى يې مه ورکوئ.

---

**Ethambutol***

ايتيمبيوتول

*Tablets 400 mg*

Oral

**استطباب:** • نرى رنځ يا توبرکلوز

☜ هميشه د نري رنځ له نورو درملو سره د کره يا ستندردې لاربښودنې له مخې تجويز شي، ۹٦ مخ ته دې مرجعه وشي.

☜ ناروغ ته وواياست چې که د ليدو ستونزې ورته پيدا شي، بايد ډاکټر ته مراجعه وکړي.

د سم او صحيح ډوز د ليکلو لپاره دې ۹٦ مخ ته مراجعه وشي."د نري رنځ د درملو معقول تجويز"

**مضاد استطباب:** د Optic neuritis په پېښو کې او له شپږو کالو کم عمره ماشومانو کې.

**بلاربښت او د شيدو ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه لري.

**اړخيزې اغيزې:** Optic neuritis, Arthralgia نادراً Hepatitis

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** له انټاسيدو سره دې يو ځاى نه ورکول کيږي، دوه ساعته مخکې يا وروسته دې ورکړل شي.

**Fansidar**

*Sulfadoxine+Pyrimethamine دې مراجعه وشي.

**Ferrous sulphate***

*Tablets 200 mg (100 mg ferrous sulphat = 30 mg elemint iron)*

Oral

**استطباب:** • د اوسپنې د کمښت له کبله د راولاړې شوې وينې لږې (انيميا) درملنه او مخنيوى.

☜ اميدوارو ښځو ته دې په وقايوي ډول د بلاربښت په بهير کې د لنګون تر وخته د ورځې يو ټابليټ تجويز شي.

☜ که مخکې له ډوډۍ وخوړل شي ښه جذبيږي. مېوې (ويټامين سی) يې هم جذب ډېروي، کـه معـدي معـايې اخـتلاط واقـع شي، د خوړو په منځ کې دې وخوړل شي.

☜ د Overdose نښې (ډېـر خطرنـاک):د زړه عـدم کفايـه، وينـه لرونکې نسناستی.

**د اوسپنې د وينې لږې د مخنيوى لپاره**

**ماشومان** (5 mg/kg) د ورځې يو ځل)

**لويان** 200 mg (يو ټابليت) د ورځې يو ځل.

**د اوسپنې د وينې لږې د درملنې لپاره**

درملنې ته دې تر دريـو مياشـتو دوام ورکـړل شـي، چـې د اوسـپنې زيرمې پوره شي.

**ماشومان** (10-25 mg/kg/day) په دوه يا درې کسري ډوزونو.

| | | |
|---|---|---|
| ۲-٦ مياشتې | 50 mg | د ورځې يو ځل. |
| ۷-۱۲ مياشتې | 50 mg | د ورځې دوه ځلې |
| ۱-۵ کالو | 100 mg | د ورځې دوه ځلې. |
| ٦-۱۲ کالو | 200 mg | د ورځې دوه ځلې |
| **لويان** | 200 mg | د ورځې درې ځلې |

**مضاد استطباب:** په Haemolytic وينې لږيو کې، په هغـو ماشـومانو کـې چـې وخيمـه سـؤ تغـذي ولري، د سؤتغذي د درملنې په لومړيو دوو اوونيو کې.

**بلاربښت او تي ورکولو وخت کې:** مضاد استطباب نه دی.

**اړخيزې اغېزې:** معدی معائي دردونه، قبضيت، نسناستی، زړه بدوالی، د ډکو ميتيازو د رنګ توريدل.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېـزې:** لـه Tetracycline، Antacids، Ciprofloxacin سـره دې په يو وخت کې نه استعماليږي، ځکه چې د جذب د خرابوالي سبب کيږي. لـه دغـه درملـو څخـه دې يو يا دوه ساعته مخکې يا وروسته استعمال شي.

**Folic acid ***

فوليک اسيد

*Tablets 5 mg*

Oral

**استطباب:** • د Folate د کمښت وينې لږې درملنه او مخنيوى.

☜ د Ferrous sulphate +Folic acid له ټابليټونو څخه

د Folate د وينې لږې د درملنې لپاره کار نه اخيستل کيږي، ځکه چې د هغې د Folic acid اندازه ډېره لږه ده.

**د Folate د وينې لږې درملنه**

له يوې مياشتې پورې دې دوام ورکړل شي

**ماشومان**

۱ مياشت - ۱۲ کال 5 mg د ورځې يو ځل

| | | | |
|---|---|---|---|
| | لويان | 10 mg | د ورځې يو ځل |

مضاد استطباب: د Vit. B 12 فقدان
شبه تحمل کيږي.

**Furazolidone**
فيورازوليډين

مه يې استعمالوئ.

**Furosemide***
فيوراسامايد
(Frusemide)
*Tablets 20 و 40 mg*
*Ampoules of 2 mg (10 mg/ml)* چې لري.

**استطباب:** • محيطي يا ريوي پرسوب (اذيما) چې د پښتورګي، زړه او ينې له عدم کفايې نه منځ ته راغلې وي.

☜ د Kwashiorkor د اذيما لپاره دې نه ورکول کيږي.

Oral

| | | | |
|---|---|---|---|
| ماشومان | 0.5-2 mg /kg | د ورځې يو ځل، په ګهيځ کې. |
| لويان | 20-80 mg | د ورځې يو ځل، په ګهيځ کې |

ځينې لويان تر 160 mg پورې ضرورت لري.

IV/IM

**د زړه عدم کفايه د سږو له اذيما سره**

| | | |
|---|---|---|
| ماشومان | 0.1-1 mg/kg | واحد ډوز |
| لويان | 40 mg | واحد ډوز |

**مضاد استطباب:** هيڅکله دې د اذيما نورو ډولونو ته پرته لـه ذکـر شـوو هـداياتو تجـويز نـه شـي. د پښتورګو په عدم کفايه کې ګټور خو په Anuria کې مضاد استطباب دي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په وخت کې د وينې د لوړ فشار د درملنې لپاره مضاد استطباب دي، ځکه چې د پيروان (Placenta) د وينې بهير ورو کوي. د زړه د عدم کفايې لپاره چې د سږو اذيما ورسـره مـل وي توصيه کيداى شي. يو خطر موجود دى، چې د وينې فشـار سمدلاسـه راټيټـوي، چـې جـنين تـه زيـان رسوي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي، خو د شيدو د کمښت سبب کيږي

**اړخيزې اغيزې:** Hypotension, Hypokalemia . د اوريدو تنا قص.

**له نورو درملو سره اړخيزې اغيزې:** د Hypokalaemia لـه کبلـه د Digoxin د تسـمم خطـر ډيرولاى شي. د Aminoglykosides کورنۍ له انتي بايوتيکو (Gentamicin يا Streptomycin) سره دې يوځاى نه استعماليږي، ځکه چې د اوريدو د تناقص خطر لوړوي.

**Gentamicin***
جينټامايسين
*Ampoules 2ml* چې د *(20 mg/ml) 40 mg* يا *(40mg/ml) 80mg* لرونکي دي.

**استطباب:** • وخيم حاد يا اختلاطى انتانات (په ځانګړې ډول د بولې لارو انتانات) •Peritontis •ثانوى Septicaemia
•Osteomyelitis • د نوي زيږيدلي ماشوم وخيم انتانات.

يادداښت: Gentamicin اساساً د Gram-negative انتاناتو پر ضـد اغيزه کوي. له يو پنسلين سره يو ځاى کيږي لکـه Ampicillin او يـا پـــه Osteomyelitis کـــې لـــه Cloxacillin ســـره پـــه ثـانوي Peritonitis کـې Ampicillin او Metronidazole هـم ورسره يوځاى کيږي.

- ☜ د واحد ورځني ډوز اغيزه د ورځنيو ګڼو ډوزونو سره يو شان ده، او ممکن اړخيزې اغيزې يې هم لږې وي.
- ☜ دا ډيره مهمه ده چې د Gentamicin ډوز ډير دقيق وسنجوئ، ځکه چې لوړ ډوز يې د وخيمو اړخيزو اغيزيو سبب کيداى شي.
- ☜ د ژوند تهديد کوونکو انتاناتو پرته، د بلاربنت په جريان کې دې استعمال نه شي.
- ☜ د درملنې دوام له ۵-۷ ورځو ، اعظمي ۱۰ ورځې.
- ☜ له نورو درملو سره دې په عين سرنج او يا Infusion کې ګډه نه شي.

IM/ IV

**ماشومان** (7.5 mg/kg د ورځې يو واحد ډوز)

۲-۱۲ مياشتنى 20-60 mg/kg د ورځې يو ځلې

۱-۵ کلن 60-100 mg د ورځې يو ځلې

۶-۱۲ کلن 100- 200 mg د ورځې يو ځلې

**لويان** (6 mg/kg د ورځې يو واحد ډوز)

180-360 mg د ورځې يو ځلې

(چې د ناروغ له وضعې پورې اړه لري)

**مضاد استطباب:** د پښتورګو په عدم کفايه کې دي په احتياط تطبيق شي. ډوز دې کم کړاى شي.

**بلاربنت:** مضاد استطباب دي، پرته له ژوند تحديدونکو انتاناتو څخه..

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** د Auditory او Vestibular عصب زيان(د اوريدلو او توازن نقصان) د تسمم لومړنی نښې: د زړه بدوالی، Tinnitis او ګنګسيت. که Gentamicin سمدلاسه قطع شي دا اغيزې يې د ارجاع وړ دي. همدا راز د پښتورګو نقصان. نادراً نساستی

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** له Furosemide سره له يو ځاى ورکولو نه دې ځان وساتل شي، ځکه چې د اوريدلو د تکليف خطر ډيروي.

---

## Glibenclamide*

ګليبين کلامايد

*Tablets 5 mg*

**استطباب:** • Non-insulin depending diabetes mellitus

Oral

**لويان:**

2.5 mg د ورځې يو ځل د ګهيځ له خوا، که ضرورت وي، دوز يې اعظمی حد ته (15 mg/day په يو يا درې کسري ډوزونو) لوړولی شئ.

**مضاد استطباب:** د پښتورګي او ينې په عدم کفايه کې دې د Hypoglycaemia د خطر له کبله په احتياط تطبيق شي.

**بلاربښت:** له لنګون مخکې مضاد استطباب دي، ځکه چېGilbenclamide د نوي زيږيدلي د Hypoglycaemia سبب کيږي. که د لاس غزونې وړ وي، د Gilbenclamide په ځای دې، د بلاربښت په وخت کې Insulin تجويز شي. که تاسې Gilbenclamide استعمالوئ، يوه اونۍ د لنګون له متوقعه وخت څخه يې مخکې قطع کړئ.

**د تي ورکولو په وخت کې:** دې ترې ځان وساتل شي، ماشوم د Hypoglycaemia د احتمالي خطر له کبله څارنې ته اړه لري.

**اړخيزې اغيزې:** د معدې معايي سيستم خفيف تشوشات،Hypoglycaemia ، د بدن د وزن زياتيدل، جلدي رشونه. ډير نادر: Agranulocytosis.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** Acetylsalicylic acid او سلفاميدونه (Co-trimoxazole) د Gilbenclamide اغيزې ډيروي او د Hypoglycaemia سبب کيدلای شي. له هغو درملو څخه چې په ډيابيټ منفی اغيزه لري، لکه Beta-blocker ، Corticosteroid ، او د Loop ډيوريټکونه او Thiazide څخه دې اجتناب وشي.

---

**Glucose*** ګلوکوز
(Dextrose)
ډکستروز
*Ampoules of 10 ml*
چې *glucose 50%*لري.

**استطباب:** • Hypoglycaemia ( د وينې د خوږې کمښت)

**Oral**

**که ناروغ په سد وي او د تيرولو توان ولري:**
بوره په اوبو کې او يا د امپول سلوشن ورته د خولې له لارې ورکړئ.

**IV**

**که ناروغ تيرولی نه شي او يا په سد نه وي:**
**ماشومان:** 50%ګلوکوز محلول 1 ml/kg د IV لارې. محلول له 10% ګلوکوز سره نری (رقيق) کړئ. دا مقدار په ۱۵ دقيقو کې تجويز کړئ، که اړه وي، تکرار يې کړئ.
**لويان:** 50% د ګلوکوز محلول 10-20 ml پرته له نري کيدو د IV لارې.

**10% محلول څنګه جوړوئ:**
د ضرورت وړ 50% ګلوکوز کې څلور چنده Sodium chloride 0.9% او يا مقطر اوبه واچوئ.

**مضاد استطباب:** نلري. ښه زغمل (تحمل) کيږي.

---

**Griseofulvin***
ګريسيوفولوين
*Tablets /capsules 125, 250 and 500 mg*

**استطباب:** • د جلد، راس او نوکانو فنګسي انتانات، (Tinea او يا Ringworm انتانات).
**نوټ:** پر Candidiasis اغيزه نه لري.

☜ غوړ او څرب خواړه يې په جذب کې مرسته کوي، د استعمال ښه وخت يې د شپې له خوړو (ماښامنۍ) سره دی.

Oral

ماشومان  10 mg/kg) د ورځې يو واحد دوز)
۲-۱۲مياشتو  62.5 mg د ورځې يو ځل
۱-۵ کال  125-190 mg د ورځې يو ځل
۶-۱۲کال  250-375mg د ورځې يو ځل
لويان  500-750 mg د ورځې يو ځل

د درملنې دوام: څلور اونۍ او يا ډير. د ټولو اعراضو لـه مينځـه تللـو وروسـته درملـنې تـه دوه اونـۍ نـور هـم دوام ورکـړئ. ضـمناً دې موضعي درملنه د Gentian violet په وسيله هم اجراً شي.

**مضاد استطباب:** د ينې عدم کفايه.

**بلاربښت:** مضاد استطباب دي. د حمل اخيستل دې له درملـنې څخـه يـوې مياشـتې وروسـته پـورې وځنډول شي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** کوم مضاد استطباب نه لري.

**اړخيزې اغيزې:** کانګې، نساستی، سرخوږی، له رڼا سره حساسيت، جلـدي انـدفاعات ، ګنګسيت، Epigastric دردونه.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** د خولې له لارې د بلاربښت ضد درملو او د وينې د پرنډيو يا تحثر ضد درملو اغيزه کموي. د فنکس ضد اغيزه يې د Phenobarbital په وسيله کميږي.

---

**Hydrochlorothiazide***

هايدروکلورتيازايد

*Tablets 25 and 50 mg*

**استطباب:** • د وينې لوړ فشار • د زړه د احتقاني عدم کفايې اذيما.

☜ د بلاربښت په دوران کې دې نه ورکول کيږي.

Oral

**اذيما**

**لويان** 25-50 mg د ورځې يو ځل دې پيل شي.
که اړتيا وي تر 100 mg دې لوړ شي.

**د وينې لوړ فشار**

**لويان** 12,5-25 mg د ورځې يو ځل دې پيل شي.
که اړتيا وي تر 100 mg دې لوړ شي.

**مضاد استطباب:** د پښتورګو شديده عدم کفايه،د Sulphonamide په مقابل کې حساسيت (د مثـال په ډول د Co-trimoxazole الرژي).

**بلاربښت:** مضاد استطباب دي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** اجتناب دې ترې وشي، په ماشوم سمي اغېزه نـه کـوي، خـو کيـدای شي د شيدو جوړول کم کړي.

**اړخيزې اغيزې:** Dehydration په هغه صورت کې چې ډوز يې د ناروغ د وضعيت مطابق نه وي عيار شـوی. معـدي معـايي تخريشـات، Hypokalaemia, Hypercalcaemia، نقـرص، د ويـنې تشوشـات ( د Neutropenia او Thrombocytopenia پـه شـمول) Diabetes mellitus, وخيمولای شي.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** که Hypokalaemia واقع شوه، د Digoxin د تسمم خطر لوړولای شي.

**Hydrocortisone***
هایدروکورتیزون
*Vials 100 mg*

استطباب: • د شدیدو الرجیکو عکس العملونو بیړنۍ (عاجله) درملنه • د استما شدیدې حملې • د پاسنیو هوایي لارو شدید انسدادونه.
یادښت: د 20 mg هایدروکورتیزونو ضد التهابی اغیزه مشابه ده د Dexamethasone 0.75 mg اویا Prednisolone 5 mg سره.

☜ یوازې دې په بیړنیو یا عاجلو پېښو کې تجویز شي، هغه پېښې چې بیړنۍ نه وي له Prednisolone څخه دې کار واخستل شي.

IV ( IM)

| | | |
|---|---|---|
| ماشومان | 2-4 mg / kg ) | یو واحد دوز) |
| ۱۲-۲ میاشتې | 25 mg | یو واحد دوز |
| ۱ -۵ کالو | 50 mg | یو واحد دوز |
| ۱۲-٦ کالو | 100 mg | یو واحد دوز |
| لویان | 100-500 mg | یو واحد دوز |

د اړتیا له مخې دوز له اتو ساعتو وروسته تکراروالای شئ، څومره چې ژر کیږي، دوز د Prednisolone فمي دوز ته واړوئ.
د ډیرو معلوماتو لپاره Prednisolone ته مراجعه وکړئ. (۵۴ مخ)

---

**Hyoscine Butyl bromide**
هایوسینبیوټایل بروماید
(Buscopan) بسکوپان
*Ampoules of 1 ml*
*چې 20 mg لري*
*Tablets 10 mg*

استطباب: • د معدي معایي او بولي تناسلي لارو سپزمونه.
☜ د خولې له لارې ښه نه جذبیږي، او دومره اغیزه نه لري.

Oral

| | | |
|---|---|---|
| لویان | 10-20 mg | د ورځې څلور ځله |

IM / IV

| | | |
|---|---|---|
| ماشومان | | |
| ۱۲-٦ کالو | 5-10 mg | تر ۳ ځلو پورې په ورځ کې. |
| لویان | 20-40 mg | (اعظمی 100 mg/ day) |

مضاد استطباب: Glaucoma، د زړه ستونزې، د میتیازو احتباس.
بلاربښت: ترې دې اجتناب وشي، د بلاربښت په لومړیو درې میاشتو کې دې نه ورکول کیږي.
د تي ورکولو په وخت کې: مضاد استطباب نه دي.
اړخیزې اغیزې: Anti-cholinergic اغیزې یې: د خولې وچیدل، Mydriasis (د کسي یا حدقې لویدل یا پراخیدل) د لیدلو له ستونزو سره، د میتیازو احتباس،قبضیت، ګنګسیت، سرخوږی.
له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې: که له انتی هستامینو (Promethazine, Chlorphenamine) انتی ډیپرسانټو (Amitriptyline) Tricyclic او یا Phenothiazines (Chlorpromazine) سره یو ځای تجویز شي Anti-cholinergic اغیزه یې لوړیږي.

---

**Ibuprofen***
ایبوپروفین
*Tablets 200 and 400 mg*

استطباب: • Rheumatic ناروغی• متوسط دردونه • نقرص
یاددښت: لکه د Diclofenac او Indomethacin په خیر ایبوپروفین هم د Non Steroidal Anti Inflammatory

Drugs له ډلې ګڼل کيږي. ناروغان همیشه لـه NSAIDs درملـو سره یو شان ځواب نه ورکوي، تاسې هڅه وکړئ چـې وموـی، چـې ستاسې ناروغ کوم يو ته ښه ځواب وايي.

☜ که د ماشوم وزن له 8 kg څخه کم وي باید تجویز نه شي.

Oral

ماشومان (20 mg/kg/day په ۳ يا ۴ دوزونو)

لويان 400-800 mg د ورځې ۳ يا ۴ ځله

د ورځې اعظمي حد 2.4 g

**مضاد استطباب**: په هغو ناروغانو کې چې د قرحو او د معدي معايي وينو تويـدونو (خونريزيـو) سـابقه ولـري. مضـاد اسـتطباب دي، پـه هغـو ناروغـانو کـې چـې لـه نـورو NSAIDs درملـو سـره (لکه Acetylsalicylic acid او Indomethacin) حساسیت ولري، مضاد استطباب دي. پـه اسـتما او هغه ماشومانو کې چې وزن يې له 8 kg لږ وي، باید ور نه کړل شي. د پښتورګو په عـدم کفایـه کـې دې په دقت ورکړل شي، لږ مقدار دې تجويز شي.

**بلاربښت**: اجتناب دې ترې وشي. په ځانګړي ډول د بلاربښت په لومړيو او وروستيو دريو مياشتو کې.

**د تي ورکولو په وخت کې**: مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې**: د NSAIDs د ډلې د ټولو درملو په پرتلـه د ايبـوبروفين لانـدې اړخيـزې اغيـزې نسبتاً کمې وي: معدوي تخريش، معـدي معـايي وينـه تويدنـه، پيپتيـک قرحـات، کـانګې، زړه بـدوالی، نسناستی، الرجيک عکس العملونه، سرخوږی او ګنګسيت.

**له نورو درملو سره يوځايي اغېزې**: له نورو NSAIDs سره دې يو ځای نه ورکول کيږي، ځکـه چې اړخيزې اغېزې يـې ډيـروي. د Quinolone - 4 لـه مشـتقاتو سـره لکـه (Nalidixic acid يـا Ciprofloxacin) د اختلاجاتو يا چاړان خطر ډيروي. که له Corticosteroid سره يو ځای ورکړل شي، د Peptic قرحو او معدي معايي ويني تويـدنو خطـر ډيـروي. لـه Diuretic سـره د پښتورګـو د Toxicity حالت زياتوي.

---

## Indomethacin

اينډوميتازين

*Tablets 25 mg*

Oral

**استطباب**: *Ibuprofen ته دې مراجعه وشي.

☜ د Indomethacin استعمال د هغې د وخيمو اړخيزو اغيـزو له کبله محدود شوی دی.

☜ ماشومانو ته دې ور نه کړل شي.

☜ هيڅکلـه دې د بلاربښـت او تـي ورکولـو پـه وخـت کـې نـه تجويزيږي.

☜ د درملو په اساسي لست کې شامل نه دي.

لويان 25-50 mg د ورځې درې ځله په خوړو کې.

**مضاد استطباب**: پاس دې Ibuprofen ته مراجعه وشي.

**بلاربښت او د تي ورکول په دوران کې**: مضاد استطباب دي.

**اړخيزې اغيزې**: معمول (په 50% ناروغانو کې) Ibuprofen ته دې مراجعه وشي. همدا راز نـادراً د ينې او پښتورګو د ستونزو او شديدو Neurological اعراضو سبب کيږي.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې**: Ibuprofen ته دې مراجعه وشي.

---

## Isoniazid*

(INH)

**استطباب**: • د نري رنځ درملنه او مخنيوی.

☜ که له درملنې لپاره پکارول کيږي، نو د توبرکلوز ضـد درملـو د

| | |
|---|---|
| ايزونيازيد<br>*Tablets 100 and 300 mg* | کره (ستندرد) لارښود په اساس دې د توبرکلوز ضد نورو درملو سره یو ځای شي. ۹٦ مخ ته مراجعه وکړئ.<br>☜ په بلاربنت کې دې Pyridoxine (Vit. $B_6$) هم ورسره یو ځای شي. |
| Oral | **د نري رنځ يا توبرکلوز درملنه**<br>د صحيح ډوز لپاره دې ۹٦ مخ ته مراجعه وشي."د توبرکلوز ضد درملو ليکل".<br>**د مخنيوي لپاره:**<br>د هغو ماشومانو د وقايې لپاره چې ميندې يې په فعال نري رنځ اخته دي او خړاخکو سمير يې مثبت وي، له زيږيدلو وروسته 5 mg/kg له شپږو مياشتو پورې ، وروسته د BCG واکسين. |

**مضاد استطباب:** د ينې په فعاله ناروغۍ کې مضاد استطباب دي.

**بلاربنت:** مضاد استطباب نه دي، خو د دې ايجاب کوي چې په څنګ کې يې اضافي Pyridoxine (Vit $B_6$) ورکړل شي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** زيړی، محيطي Neuropathy چې د Pyridoxine په تطبيقولو سره د مخنيوي او ارجاع وړ ده. نادراً اختلاجات.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** له Antacid سره دې يو ځای تجويز نه شي، ځکه چې د جذب د کمښت سبب کيږي، نو دوه ساعته مخکې او يا وروسته دې ورکړل شي.

---

| | |
|---|---|
| **Isoniazid + Thioacetone***<br>ايزونيازيد+ تيواسيتون<br>*Combined tablets 100+50 mg and 300+150 mg* | **استطباب:** • نري رنځ يا توبرکلوز<br>☜ هميشه دې د توبرکلوز ضد درملو د کره (ستندرد) لارښود په اساس د توبرکلوز ضد نورو درملو سره يو ځای شي. ۹٦ مخ ته مراجعه وکړئ. |
| Oral | د صحيح ډوز لپاره دې ۹٦ مخ ته مراجعه وشي."د توبرکلوز ضد درملو ليکل". |

**اړخيزې اغيزې:** د Thioacetone اړخيزې اغيزې: جلدي عکس العملونه ، معدی معايي اعراض، دا دواړه پيښې په هغو کسانو کې چې HIV ولري او يا په AIDS اخته وي ډيرې معمول او وخيمې وي.

د ډيرو معلوماتو لپاره Isoniazid ته مراجعه وکړئ. (۳۸مخ)

**Lidocaine***
لايډوکايين
(Lignocaine)
ليګنوکايين

*Vials/Ampoules 1% (=10 mg/ml)*
*Am/Vials poules 2% (=20 mg/ml)*

**استطباب:** • موضعي انستيزي.
**يادونه:** د Regional، Spinal او Epidural انستيزی لپاره ترې هم کار اخيستلی شو.

- ☜ د ۵ دقيقو په حدودو کې وخت اخلي چې ناحيه انستيزی شي. انستيزي له يو نه تر يو نيم ساعت پورې دوام کوي.
- ☜ تاسې کولای شئ چې 1 % محلـول يې لـه 0,9% سـوډيم کلورايد مساوي مقدار سره يو ځـای کـړئ او 0,5% محلـول يې جوړ کړئ، چې د ماشومانو د موضعي انستيزۍ لپـاره ګټـور دی.

**Local anaesthesia (موضعي انستيزي):**

د درملو ډوز د هغې برخې پورې چې بايـد انسـتيزي شـي، اړه پيـدا کوي:

% 5 ,0 اويا % 1 محلول د تپونو د ګنډلو لپاره وکاروئ.
2% محلول د غاښونو د پښو لپاره وکاروئ.

**اعظمي ډوزونه يا Maximum dosage:**

**ماشومان**

له % 0,5 محلول نه کار واخلـئ، د دوو سـاعتو پـه اوږدو کـې لـه 4 mg/kg څخه ډېره مه تجويزوئ.

**لويان**

هيڅکله په ۲ سـاعتونو کـې لـه 12.5 ml څخـه د 2% محلـول او 25 ml د 1% محلول او 50 ml د 0.5% محلول او يـا 250 mg څخه ډېر مه استعمالوئ.

---

**Lidocaine+ Adrenaline***

(Lignocaine + Epinephrine)

**استطباب:** *Lidocaine ته دې مراجعه وشي.
**يادښت:** د غاښونو پـه انسـتيزۍ کـې خـورا مهـم دي، ځکـه چـې د انستيزۍ دوام اوږدوي.

- ☜ هيڅکله Lidocaine + Adrenaline د قضيب د انسـتيزۍ لپاره لکه ( سنتول )، د لاسونو او پښو د ګوتو د انستيزۍ لپـاره، د غوږونو او پزې د انستيزۍ لپاره مه استعمالوئ.

**د Lidocaine + Adrenaline لوړ ډوز:**

**ماشومان** 7 mg/kg د دوو ساعتونو په اوږدو کې
**لويان** 400 mg د دوو ساعتونو په اوږدو کې

پورتنی ډوز د Lidocaine په اساس سنجول کيږي.

**مضاد استطباب:** د Hypovolaemia په پېښو او د موضعي انستيزئ سره د حساسيت په صورت کې. هيڅکله Lidocaine + Adrenaline د قضيب د انستيزئ لپاره لکه ( سنتول )، د لاسونو او پښو د ګوتو د انستيزئ لپاره، د غوږونو او پزې د انستيزئ لپاره د Ischaemia او Necrosis له خاطره مه استعمالوئ.

**بلاربښت او د تي ورکول په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** د وينې د فشار سقوط، زړه بدوالی، کانګې، د زړه بې نظمي، Bradycardia، ګنګسيت، چاړان يا اختلاجات او تنفسي انحطاط. اړخيزې اغيزې د موضعي انستيزئ په وخت کې هغه وخت منځ ته راځي، چې درمل په سيستميک ډول جذب شي. دا اړخيزې اغيزې هغه وخت را منځ ته کيږي، چې د درملو لوړ مقدار تطبيق شوی وي او يا سهواً د وينې په اوعيه کې زرق شي.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** د موضعي انستيزئ په شکل دومره مهمې نه دي.

| | |
|---|---|
| **Magnesium hydroxide*** <br> مګنيزيم هايډروکلورايد | Antacids ته دې مراجعه وشي. |
| **Mebendazole*** <br> ميبينډازول <br><br> *Tablets 100 mg* <br><br> Oral | **استطباب:** • Helminths (چينجي) <br> يادښت: د اسکاريس د درملنې لپاره (Roundworm)، Hookworm، Trichuris (Whipworm) او Enterobius (Oxyuris, Threadworm, Pinworm) ډير اغيزمن دي. په Strongyloides او Tapeworms دويم غوره درمل دي. <br> ☜ له دوو کالو وړو ماشومانو او د بلاربښت په لومړيو دريو مياشتو کې دې نه تجويزيږي. <br> Hookworm, Ascaris او Whipworm: <br> **له ۲ کالو لوی ماشومان او لويان:** <br> 100 mg د ورځې دوه ځلې د درې ورځو لپاره <br> کولای شئ اسکاريس په يو واحد ډوز 500 mg تداوي کړئ. <br> Pinworm: <br> **له ۲ کالو لوی ماشومان او لويان:** <br> 100 mg واحد ډوز، دوه اوونۍ وروسته دې تکرار شي. <br> Strongyloides او Tapeworm(دويم غوره درمل) <br> **له ۲ کالو لوی ماشومان او لويان:** <br> 200 mg د ورځې دوه ځله د درې ورځو لپاره. |

**مضاد استطباب:** له دوو کالو کوچنيو ماشومانو ته دې نه ورکول کيږي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په لومړيو دريو مياشتو کې مضاد استطباب دي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغيزې:** ندرتاً د ګېډې دردونه او نسناستي.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** کوم ځانګړی تعامل نه را منځ ته کيږي.

**Metamizol**
میتامیزول
(Novalgin, Dipyrone, Noramidopyrine, Analgin)

☜ هیڅکله دې نه تجویزیږي، ډیر خطر لري، د معمولو خطرناکو اړخیزو اغېزو له کبله (د مثال په ډول Aplastic anaemia ) په ډیرو هېوادونو کې منع شوي دي.

---

**Methyldopa***
میتیل ډوپا
*Tablets 250 mg*
Oral

استطباب: • د وینې لوړ فشار (په هغه صورت کې چې Beta-blocker لکه Atenolol یا Propranolol او Diuretic لکه Hydrochlorthiazide اغیزه و نه کړي).
یادښت: د بلاربښت په وخت کې د وینې د لوړ فشار لومړی غوره درمل.
لویان: 250 mg دوه - درې ځله د ورځې
که اړتیا وي ډوز هرې دوه ورځې وروسته اعظمی 3 g/day لوړولای شئ. په زړو ناروغانو کې 2g
مضاد استطباب: Depression، د ینې او پښتورګو ناروغی.
بلاربښت او تي ورکولو وخت کې: مضاد استطباب نه دي.
اړخیزې اغیزې: د خولې وچوالی، Sedation، Depression ، نسناستی، د مایعاتو احتباس (اذیما)،د ینې تخریبات، جلدي اندفاعات، Haemolytic anemia او Postural hypotension.
له نورو درملو سره یوځایي اغیزې: دومره مهمې نه دي.

---

**Metoclopramide***
میتوکلوپرامایډ
*Tablets 10 mg*
*Ampoules of 2 ml (5 mg/ml) 10 mg* چې لري.
Oral/ IM/ IV

استطباب: • د زړه بدوالی • کانګې • معدي معایي ستونزې چې د Hiatus hernia له کبله را منځ ته شوی وي • اټکی (Hiccups).
☜ په کوچنیو ماشومانو کې دې د اړخیزو اغیزو له کبله استعمال نه شي.
☜ د وریدي یا عضلي لارې خومره چې ژر کیدلای شي په فمي لاره بدل کړئ.
ماشومان (0.3 mg/kg /day) په درې کسري ډوزونو)
له ۵ کالو کم عمرو کې دې ترې ځان وساتل شي.
٦-١٢ کالو 2.5-5 mg د ورځې درې ځلې
لویان 5-10 mg د ورځې درې ځلې

مضاد استطباب: په انسدادونو او معدي معایي تثقباتو کې مضاد استطباب دي. په وړو ماشومانو کې دې نه ورکول کیږي.
بلاربښت او د تي ورکولو په وخت کې: مضاد استطباب نه دي.
اړخیزې اغیزې: خارج اهرامي اعراض (Extra pyramidal symptoms) په ځانګړي ډول په ماشومانو کې: لړزه، د مخ ، تنې او ګیډې (Dystonia) غیر طبیعي حرکتونه، نارامی، خوبوړي کیدل، نسناستی.
له نورو درملو سره یوځایي اغیزې: له Anti-psychotic (Chlorpromazine) درملو سره یې خارج اهرامي اغیزې ډیریږي.

**Metronidazole***

ميترونايدازول

*Tablets 200, 250 and 400 mg*

*Syrups د مستحضراتو مختلف ډولونه يې پيدا کيږي.*

Oral

**استطباب:** • Amoebic dysentery • Giardiasis، •د ينې اميبي ښنځې (ابسې) • Anaerobic انتانات •Trichomoniasis

☜ د Metronidazole شربتونه چې له نورو درملو سره يو ځای وي مه استعمالوئ. چون د هغوی يو ځايي ترکيب غير معقول دی.

:Giardiasis

**ماشومان** (40 mg/kg د ورځې يو ځل د درې ورځو لپاره)

**اويا** (15 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو د لسو ورځو لپاره)

۲-۱۲ مياشتې 250 mg د ورځې يو ځل د درې ورځو لپاره

۱-۵ کالو 500 mg د ورځې يو ځل د درې ورځو لپاره

۶-۱۲ کالو 1 g د ورځې يو ځل د درې ورځو لپاره

**لويان** 2 g د ورځې يو ځل د درې ورځو لپاره

**اويا** 400 mg د ورځې درې ځله د پنځو ورځو لپاره

Amoebic dysentery

**ماشومان** (35-50 mg/kg/day د ورځې درې ځلې د ۵-۱۰ ورځو لپاره)

۲-۱۲ مياشتې 50-100 mg د ورځې درې ځلې د ۵-۱۰ ورځو لپاره

۱-۵ کالو 100- 200 mg د ورځې درې ځلې د ۵-۱۰ ورځو لپاره

۶-۱۲کالو 200- 400 mg د ورځې درې ځلې د ۵-۱۰ ورځو لپاره

**لويان** 750-800 mg د ورځې درې ځلې د ۵-۱۰ ورځو لپاره

**د ينې ښنځې (ابسې) يا Anaerobic انتانات**

**ماشومان** (20-30 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو)

۲-۱۲ مياشتې 50 mg د ورځې درې ځلې

۱-۵ کال 100 mg د ورځې درې ځلې

۶-۱۲ کال 200 mg د ورځې درې ځلې

**لويان** 400 mg د ورځې درې ځلې

د ينې اميبي ښنځې (ابسې) د لسو ورځو لپاره تداوي کړئ او ورپسې د لسو ورځو لپاره Diloxanide ته ادامه ورکړئ.

Trichomoniasis

**لويان** 2 g واحد ډوز

**او يا** 200 mg د ورځې درې ځله د اوو ورځو لپاره.

**مضاد استطباب:** د ينې په عدم کفايه کې دې په احتياط ورکړل شي.
**بلاربښت:** د بلاربښت په لومړيو دريو مياشتو کې دې د Teratogenicity احتمال له کبله ترې ځان وساتل شي.
**د تي ورکولو په وخت کې:** د واحدو لوړو ډوزونو څخه دې اجتناب وشي.
**اړخيزې اغيزې:** د زړه بدوالی، کانگې، معدي معايي تشوشات، ذايقوي تغيرات (فلزي بده مزه)، جلدي اندفاعات، ګنګسيت، د تشو ميتيازو تور رنګه کيدل ، نادراً چاړان (اختلاجات) يا محيطي Neuropathy (د لاسونو او پښو ميږي-ميږي کيدل)
**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** که له الکهولو سره يو ځای استعمال شي د رواني عکس العمل سبب کيږي.

---

**Morphine***
مورفين
*Tablets 10 mg*
*Ampoules of 1 ml*
*چې 10 mg لري*

**استطباب:** • حاد او ځنډني شديد دردونه • د زړه احتشأ.

☜ يوازې دې په ډيرو شديدو دردونو کې استعمال شي، پرله پسې استعمال يې د روږديتوب (اعتياد) سبب کيږي.

Oral
د وخيمو او ځنډنيو دردونو د درملنې لپاره (مثلاً د چونګاښ يا کينسر په ناروغانو کې) Morphine په منظم ډول هر څلور ساعته وروسته د خولې يا SC لارې تجويز کړئ. درد ته مه منتظريږئ، چې کله پيل کيږي، په هغه ډوز چې لاندې ذکر شوی، پيل يې کړئ او که اړتيا وي ډوز لوړ کړئ.
د يو قانون په څير: فمي دوز تقريباً د ( IM) دوه چنده دی.

IM/SC
ماشومان

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ مياشتې | 0.5-1.5 mg | هر ۴-٦ ساعته وروسته |
| ۱-۵ کال | 2.5-5 mg | هر ۴-٦ ساعته وروسته |
| ٦-۱۲کال | 5 mg | هر ۴-٦ ساعته وروسته |
| لويان | 7.5-15 mg | هر ۴ -٦ ساعته وروسته |

IV
ماشومان او لويان
IVډوز د IM/SC د 1/4-1/2 ډوز سره برابر دی.

**مضاد استطباب:** په روږدو يا معتادينو کې، Paralytic ileus، Pancreatitis.
په Hypotension او هغه ماشومانو کې چې عمر يې له يو کال کم وي ايجتناب دې ترې وشي.
**بلاربښت:** له لنګون مخکې دې نه ورکول کيږي، له زيږيدلو وروسته د نوي زيږيدلي ماشوم د تنفسي انحطاط سبب کيدلای شي.
**د تي ورکولو په وخت کې:** اجتناب دې ترې وشي.
**اړخيزې اغيزې:** روږديتوب (اعتياد)، کانګې، قبضيت، خوبوړي کيدل، تنفسي انحطاط او مړينه.
**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** دومره مهمې نه دي.

## Multivitamins/ Vitamin B complex

مولتي وايټامين

مولتي ويټامين د درملو په بنسټيز يا اساسي لست کې نه دي شامل، د هغې د پراخ استعمال لپاره کوم ځانګړې جوت دليل وجود نه لري. دا ډيره غلطه عقيده ده چې مولتي ويټامين ناروغ غښتلي کوي او اشتها يې ډيريږي. هغه پيسې چې ناروغ يې د مولتي ويټامين لپاره لګوي، ښه دا ده چې د خوړو لپاره يې ولګوي.

د ويټامينونو په فقدان يا کمښت کې ښه دا ده چې د اړونده ويټامين له مستحضراتو څخه کار واخستل شي.

---

## Nalidixic acid*

نالي ډيکسيک اسيد

*Tablets 250 mg and 500 mg*

Oral

**استطباب:** دويم غوره درمل "په هغه صورت کې چې له نورو درملو سره ځواب و نه وايي." د • Bacillary dysentery • ښکتنيو بولي لارو انتاناتو لپاره.

☜ د بلاربښت په دوران کې دې نه تجويزيږي.

☜ د "لومړني غوره" انتي بايوتيک په ډول دې نه استعماليږي.

**ماشومان** (50 mg /kg/day) په څلورو کسري ډوزونو)

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ مياشتې | 62,5-125 mg | د ورځې څلور ځلې |
| ۱-۵ کال | 250 mg | د ورځې څلور ځلې |
| ۶-۱۲ کال | 500 mg | د ورځې څلور ځلې |
| **لويان** | 1 g | د ورځې څلور ځلې |

که استطباب يې موجود وي Nalidixic acid ماشومانو ته توصيه کولای شئ.

د ډيرو معلوماتو لپاره Ciprofloxacin ته مراجعه وکړئ.(۲۳ مخ)

---

## Niclosamide*

نکلازامايد

*Tablets 500 mg*

Oral

**استطباب:** • فيتې ډوله چينجيان يا Tapeworms (Hymenolepsis nana) او د فيتوي چينجيانو نور ډولونه

☜ ټابليټ بايد مخکې له تيرولو ميده او وژول شي.

Hymenolepsis nana

**ماشومان**

له ۲ کالو کم عمره لومړۍ ورځ 500 mg

وروسته د ورځې 250 mg يو ځلې د شپږو ورځو لپاره.

۲-۱۲ کالو لومړۍ ورځ 1 g

وروسته د ورځې 500 mg يو ځلې د شپږو ورځو لپاره.

**لويان** لومړۍ ورځ 2g

وروسته د ورځې 1 g يو ځلې د شپږو ورځو لپاره.

**د فيتوي چينجيو نور ډولونه:**

يوازې يو ځل، د H.nana د لومړنۍ ورځې د ډوز په اندازه دې ورکړل شي.

**مضاد استطباب:** وجود نه لري.

**بلاربښت او د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب وجود نه لري.

**اړخيزې اغيزې:** بطني دردونه، کانګې

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** د درملو تر منځ کوم مهم دوايي تعامل منځ ته نه راځي.

---

## Nifedipine*

**استطباب:** • د وينې لوړ فشار• د وينې د خبيث لوړ فشار

نیفی ډیپین
*Capsules 10 and 20 mg*
Oral

(Hypertensive crisis)"لوړې غوره" درمل

Hypertension
لویان 10 mg د ورځې درې ځله
که تر درې ورځو یې خپله اغیزه زبات نه کړای شوه، نـو ډوز یـې تـر 20 mg د ورځې درې ځلې ته لوړ کړئ.

**د وینې خبیث لوړ فشار ( Hypertensive crisis)**
په پیل کې دې 10 mg کپسول په خوله کې له پرانستلو وروسـته تـیر شي. د وینې فشار ممکن ۱۵-۳۰ دقیقې وروسته راټـیټ شـي، کـولای شئ ډوز وروسته له ۳۰ دقیقو تکرار کړئ، د Stroke له کبلـه د ویـنې فشار سملاسي (آني) مه راټیټوئ.

**مضاد استطباب:** Hypotension، شدید Aortic stenosis

**بلاربښت:** مضاد استطباب نه دي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** د امکان په صورت کې دې د تي ورکولو په دوران کې نه تجویزیږي.

**اړخیزې اغیزې:** سرخوږ، چې معمولاً وروسته له څو ورځو ښه کیږي، د مخ د سـوروالي او تـودوالي احساس (Flushing)، ګنګسیت، د زړه ټکان او د زړه بدوالی.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** له Beta-blocker سره یـې یـو ځـای مـه اسـتعمالوئ د Severe hypotension او د زړه د عدم کفایې له کبله.

---

**Nystatin***
*نایستیتین*
*Tablets 100, 000 and 500,000 IU*
Oral

**استطباب:** • Candidiasis (فمي، معدي معایي او مهبلي).

(Candidiasis) Oropharyngeal thrush
ټابلیټونه باید لومړې وټکول شي او بیا وړو ماشومانو تـه ورکـړل شـي.
لوی ماشومان او لویان باید ټابلیټونه وروي.
100,000-500,000 I.U د ورځې څلور ځله له خوړو وروسته.
د درملنې موده لس ورځې

Vaginal

Vaginal thrush (Candidiasis)
ټابلیټونه دې مرطوب کړای شي او د مهبـل لـه لارې دې مخکـې لـه ویده کیدو استعمال شي.
100,000-200,000 IU د مهبل له لارې یو ځل (د شپې)
د درملنې موده ۱۴ ورځې

**مضاد استطباب:** مضاد استطباب نه لري.

درمل ښه زغمل (تحمل) کیږي.

**Oral Rehydration Salts* (ORS)**

اورل ريهايډريشن سالټز
*د يو ليتر لپاره د ORS پاکټ د ګلوکوز او الکترولايټو محلول*

استطباب:• په نسناستي کې د Dehydration د مخنيوي لپاره
• د خفيف او متوسط Dehydratio درملنه.

- ټولو هغو ناروغانو ته چې نسناستی ولري ORS ورکړئ.
- همېشه ناروغ ښه پوه کړئ، چې څرنګه يې استعمال کړي.

## ORS څرنګه جوړولای او ورکولای شئ.

د پاکټ محتويات په يو ليتر (څلور ګيلاسه) خوټېدلو (يخو شوو) اوبـو او يا چای کې حل کړئ.
ورو ماشومانو ته يې په پياله يا سيپۍ (کاچوغه) ورکړئ، هيڅکله يې د رودن (شيرچوشک) په وسيله مه ورکوئ.
په يوه دقيقه کې دې له يوې لوېې سيپۍ (کاچوغې) څخه ډېر نه ورکول کيږي، له هغې پرته به ماشوم کانګې پيل کړي.
نوټ: که د ORS پاکټ نه وي، کولای شئ مشابه محلول په کور کې جوړ کړئ.

## د ORS محلول په کور کې څرنګه جوړولای شئ، د وړو مالګې سلوشن:

که له تاسې سره د ORS پاکټ نه وي، ناروغ ته وښاياست چې څرنګه د اوړو او مالګې محلول يا Weat Salt Solotion (WSS) جوړ کړي. دوه ټونګې مالګه او دوه موټې اوړه په څلور پيالو اوبو کې واچوئ، وې خوټکوئ، پرې يې ږدئ چې ساړه شي، بيا يې ناروغ ته ورکړئ. د هغې مقدار د ORS له مقدار سره چې د ډيهايډريشن د درملنې لپاره يې ورکوئ يو شی دی.

## د نسناستي په وخت کې د Dehydration د مخنيوي لپاره

Oral

که ناروغ ډيهايډری نه وي، د ډيهايډريشن د مخنيوی لپاره، د اوبلنو ډکو ميتيازو له شروع سره سم ORS پيل کړئ.

ماشومان

له ۲ کالو کم عمره نيم ګيلاس ORS د هر وار ډکو ميتيازو لپاره
۳-۱۰ کالو يو ګيلاس ORS د هر وار ډکو ميتيازو لپاره
له ۱۰ کالو لوی او لويان
د ORS دوه ګلاسه د هر وار ډکو ميتيازو لپاره

## د خفيف او متوسط ډيهايډريشن درملنه

په لومړيو ۴ ساعتونو کې دې لاندې مقدار ORS توصيه شي، له هغې وروسته د ناروغ وضعې ته وګورئ او عمل وکړئ، يا پـه همـدې ډول درملنې ته دوام ورکړئ او يا په وقايوي ډول ORS د ډکـو ميتيـازو د دفعاتو په حساب تجويز کړئ.

ماشومان

| | | |
|---|---|---|
| له ۴ مياشتو کم عمره | 200-400 ml | په لومړيو ۴ ساعتونو کې |
| ۴-۱۱ مياشتو | 400-600 ml | په لومړيو ۴ ساعتونو کې |
| ۱۲-۲۳ مياشتو | 600-800 ml | په لومړيو ۴ ساعتونو کې |
| ۲-۴ کالو | 800-1200 ml | په لومړيو ۴ ساعتونو کې |
| ۵-۱۴ کالو | 1200-2200 ml | په لومړيو ۴ ساعتونو کې |

لويان　2200-4400 ml　په لومړيو ۴ ساعتونو کې

**د وخيم ډيهايدريشن درملنه**

معمولاً د وريدي لارې د Ringer-Lactate تجويزيږي، خو د هغې تر پيل کيدو پوري ORS پيل کړئ.

**مضاد استطباب:** کوم مضاد استطباب وجود نه لري.

او، ار، اس (ORS) ښه زغمل (تحمل) کيږي.

---

**Oxytocin***

اوکسي ټوسين

*Ampoules of 1 ml*

چې 5 او يا 10 IU لري.

IV

**استطباب:** • د لنګون Induction

- ☜ ځان متيقين کړئ، چې د هغې د استعمال لپاره کوم عدم استطباب نه وي موجود.
- ☜ يوازې کله چې غشأ څيرې شوه او عنق 3-4 cm پرانستل شو، تطبيق دې شي.
- ☜ هميشه د جنين زړه د Foetal distress د خطر له کبله په دقت Monitor کړئ.

د هغې 1-5 IU د 0.9% Sodium chloride په 500 ml محلول او يا 5% ګلوکوز کې اچول کيږي له 2-4 څاڅکي په دقيقه کې پيل او ورو-ورو د زيلانځ (رحم) د تقلصاتو تر عادي کيدو پورې دې يې مقدار لوړ شي (اعظمي حد 40 څاڅکي په في دقيقه کې)

---

**مضاد استطباب:** د زيلانځ (رحم) Hypertonia،د Caesarian section سابقهٔ، Pre eclampsia ,Placenta praevia ,Fetal distress, په هغه صورت کې چې د مور حوصله د ماشوم د رأس د عبور ګنجايش و نه لري (Cephalo- pelvic disproportion). د Oxytocin له تطبيق مخکې بايد د زيلانځ (رحم) عنق حد اقل 3-4cm پراخه شوی او غشأ څيرې شوې وي.

**بلاربښت:** د مضاد استطباب برخه دې وکتل شي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** استطباب نه لري.

**اړخيزې اغيزې:** معمولاً هغه وخت پېښيږي چې د هغې مضاد استطبابات په نظر کې نه وي نيول شوي او يا يې ډوز زيات شي. د زيلانځ Spasm ، د زيلانځ د تنبهاتو زياتوالی، او د زيلانځ شکيدل، Foetal distress، زړه بدوالی او کانګې.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** کوم مهم تعامل نه را منځ ته کيږي.

---

**Paracetamol***

پاراسيتامول

(Acetaminophen)

اسيت امينوفين

*Tablets 100 and*

**استطباب:** • خفيف او متوسط دردونه (سرخوږی، د غاښونو درد، د بندونو او عضلاتو درد ، نيم سری (Migraine) • تبه.

يادداښت: ضد التهاب اغيزه نه لري.

*500 mg*
*Syrup 120 mg/5 ml*
Oral

**ماشومان** (40 mg/kg/day په ۳-۴ کسري ډوزونو)

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتو | 50-125 mg | تر ۴ ځلو په ورځ کې |
| ۱-۵ کالو | 125-250 mg | تر ۴ ځلو په ورځ کې |
| ۶-۱۲ کالو | 250-500 mg | تر ۴ ځلو په ورځ کې |
| لویان | 500 mg-1 g | تر ۴ ځلو په ورځ کې |

**مضاد استطباب:** د ینې په ناروغیو کې دې په احتیاط تطبیق شي.
**بلاربښت او د تي ورکول په وخت کې:** مضاد استطباب نه لري.
**اړخیزې اغیزې:** له لوړو ډوزونو وروسته د ینې تخریبات منځ ته راځي.
**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** کومه مهمه پېښه نه رامنځ ته کوي

---

**Penicillin V***
پینسیلین وي
(Phenoxy methy1-penicillin)
*Tablets 250 mg*
*Syrup 125 mg / 5ml*
Oral

**استطباب:** • Tonsillitis • جلدي انتانات چې وخیم نه وي • د غاښونو ښنځې (ابسې).

☜ د کم جذب له کبله د Pneumonia او نورو وخیمو انتاناتو د درملنې لپاره دې نه توصیه کیږي.

☜ له خوړو دې یو ساعت مخکې ورکړل شي.

☜ همیشه باید درملنه تر ۵ ورځو اوږده شي. Tonsillitis لپاره ۱۰ ورځې.

**ماشومان:** (50 mg/kg/day په ۳-۴ کسري ډوزونو).

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ میاشتو | 125 mg | د ورځې درې ځلې |
| ۱-۵ کالو | 250 mg | د ورځې درې ځلې |
| ۶-۱۲ کالو | 250-500 mg | د ورځې درې ځلې |
| لویان | 500-750 mg | د ورځې درې ځلې |

**مضاد استطباب:** له پنسلین سره حساسیت.
**بلاربښت او د تي ورکولو په وخت کې:** مضاد استطباب نه دي.
**اړخیزې اغیزې:** زړه بدوالی، نسناستی او جلدي اندفاعات، حساسیت..
**له نورو درملو سره یوځایي اغېزې:** له نورو Antibiotic سره دې یو ځای نه ورکول کیږي، تر څو چې یې کوم واضح استطباب نه وي موجود.

---

**Phenobarbital***
فینوباربیټال
(Phenobarbitone)
فینوبار بی تون
*Tablets 15,30,50 and 100 mg*
*Ampoules of 2 ml*

**استطباب:** • صرعه • په تیتانوس کې د ارامولو (Sedation) لپاره • چاړان یا ختلاجات.

یادښت: اوږده درملنه معمولاً هغه وخت پیل کیږي، کله چې ناروغ لږترلږه دوه لوی صرعوي اختلاجونه تیر کړي وي. درملنې ته تر هغه وخته دوام ورکول کیږي، چې په ناروغ په دوو کالو کې هیڅ چاړان یا اختلاج نه وي راغلی، اکثراً درملنې ته د عمر تر پایه دوام ورکړل کیږي.

☜ هیڅکله درملنه سملاسي (دفعتاً) مه قطع کوئ. همیشه

چې 200 mg يعنې (100 mg /ml) لري.

ډوز ورو-ورو په څو اوونيو کې را ټيټ کړئ، پرته لـه هغې د اختلاجاتو خطر موجود دی.

Oral

د هر ناروغ لپاره ډوز بيل-بيل عيار (Adjust) کړئ. کم ډوز پيل کړئ (لويان 60-90 mg) او په هرو ۱-۲ اوونيو کې يې لوړ کړئ (د لويانو لپاره 30 mg او د ماشومانو لپاره 1 mg/kg اضافه کړئ) تر څو چې اختلاجات کنټرول شي او يا درمل اعظمی ډوز ته ورسيږي چې ناروغ هغه زغملی يا تحمل کولای شي. يوازې په هغه صورت کې چې په دې ډوز هم خوب و نه وايي بل درمل لکه Phenytoin له هغې سره يو ځای کړئ.

ماشومان (5 mg/kg د ورځې يو ځل د شپې له طرفه)

۱۲-۳ مياشتو 15-45 mg د ورځې يو ځل د شپې له طرفه

۱-۵ کالو 30-100 mg د ورځې يو ځل د شپې له طرفه

۱۲-٦ کالو 50-150 mg د ورځې يو ځل د شپې له طرفه

لويان 60-300 mg د ورځې يو ځل د شپې له طرفه

**د چاړان يا اختلاج د تم کولو لپاره (په هغه صورت کې چې ډيازيپم اغيزه و نه کړي):**

IV

ماشومان ( 15 mg/kg ورو په وريد کې)

لويان 100-200 mg ورو په وريد کې

عضلي زرقيات ممکن دي، خو د ضعيف جذب له کبله نسبت وريـدي زرق ته يې اغيزه لږه ده.

**مضاد استطباب:** په تنفسي انحطاط او د ينې په عدم کفايه کې دې احتياط وشي.

**بلاربښت:** که امکان ولري اجتناب دې ترې وشي، د بلاربښت په لومړيو دريـو مياشتو کـې ممکـن د ولادي سؤ تشکلاتو سبب شي، او که د بلاربښت په دريـو وروسـتيو مياشـتو کـې تجـويز شـي، د نـوي زيږيدلي ماشوم د وينې تويدنې (خونريزی) سبب کيدلای شي. کـه د صـرعې هغـې نـاروغې تـه چـې حمل يې اخيستی وي او فينوباربيتال ورته مخکې پيل شوي وي، مـور او ماشـوم دواړو تـه د Grand mal صرعې د اختلاجاتو په نسبت د Phenobarbital خطر لږ دی. د بلاربښت په موده کـې دې مور ته Folic acid او نوي زيږيدلي ماشوم ته يې په وقايوي ډول Vit.K ورکړل شي.

**د تي ورکولو په وخت کې:** له زيږون وروسته کـه ممکـن وي اجتنـاب دې تـرې وشـي، د نـوي زيږيدلي ماشوم د خوبوړي کيدو(Drowsiness) سبب کيدلای شي.

**اړخيزې اغيزې:** خوبوړي کيدل(Drowsiness), تخرُشيت، د کرو ورو تغيرات، په ماشومانو کـې د زده کړې ستونزې، نارامي، روږديتوب (اعتياد)، Folate ډوله وينه لږي (په فوليک اسـيد دې تـداوي وشي).

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** که له نورو Sedative درملو سره يوځای شي، Sedative اغيـزې يـې زياتيـږي (Diazepam ,Phenobarbital). کـه لـه Anti-depressant (Amitriptyline) او يا Anti-psychotic (Chlorpromazine) سـره يـو ځـای شـي، ضـد صرعوي اغيزه يې متناقص کيږي.

**Phenylbutazone**
فينل بيوټازون

☜ هيڅکله دې نـه کـارول کيـږي، اسـتعمال يـې د خطـر سـبب کيدلای شي. په ځو هېوادونو کې منع شوي دي.

---

**Phenytoin***
فيني ټويين

*Tablets 25 ,50 and 100 mg*
*Ampoules of 5 mg*
250 mg چې
(50 mg /ml) لري.

**استطباب:** • صرعه • چاړان يا اختلاجات.

**يادښت:** اوږده درملنه معمولاً هغه وخت پيل کيږي، کله چې نـاروغ لږترلږه دوه لوی صرعوي اختلاجونه تير کړي وي. درملنې ته تر هغـه وخته دوام ورکول کيږي، چې په ناروغ په دوو کالو کې هيڅ چـاړان يا اختلاج نه وي راغلی، اکثراً درملنې ته د عمر تر پايـه دوام ورکـړل کيږي. د چاړان لپاره يوازې هغه وخت چې Diazepam اغيزه و نه کړي.

☜ هيڅکله درملنه سملاسي (دفعتاً) مه قطع کوئ. هميشه د درملو ډوز ورو-ورو د څو اوونيو په اوږدو کې راټيټ کړئ، له هغې پرته د اختلاجاتو خطر موجود دی.

**Oral**

د هر ناروغ لپاره ډوز بيل-بيل عيار (Adjust) کړئ. لږ ډوز پيل کړئ (لويان 150 mg، ماشومان 25 يا50 mg) او په هروا ۱-۲ اوونيو کې هغه لوړ کړئ (د لويانو لپاره 50 mg او د ماشومانو لپاره 25-50 mg دې اضافه شي) تر څو چاړان کنټرول او يا ډوز اعظمي حد ته ورسيږي، چې ناروغ يې زغملی شي. يوازې په هغه صورت کې چې په دې ډوز خواب و نه وايي، بل درمل لکه Phenobarbital ورسره يو ځای کړئ.

**ماشومان** ( 3-8 mg /kg /day په ۲ کسري ډوزونو)

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ مياشتو | 12.5-50 mg | په ۲ کسري ډوزونو |
| ۱-۵ کالو | 25-100 mg | په ۲ کسري ډوزونو |
| ۶-۱۲ کالو | 50-150 mg | په ۲ کسري ډوزونو |

**لويان** 150-300 mg په ۲ کسري ډوزونو

د لويانو اعظمي ډوز 600 mg په ورځ کې

**IV**

**د اختلاجاتو د تم کولو لپـاره پـه هغـه صـورت کـې چـې Diazepam اغيزه و نه کړي:**

| | | |
|---|---|---|
| **ماشومان** | 10 mg/kg | ورو د وريد له لارې |
| **لويان** | 150-250 mg | ورو د وريد له لارې |

☜ هيڅکله دې له 50 mg په يـوه دقيقـه کـې ډيـر نـه ورکـول کيږي.

عضلي زرقيـات ممکـن دي، خـو د ضـعيف جـذب لـه کبلـه نسـبت وريدي زرق ته يې اغيزه لږه ده.

**مضاد استطباب:** د ينې په فعالو ناروغيو کې مضاد استطباب دي، که له وريدي لاري ورکول کيږي په Bradycardia او د زړه په بلاکونو کې مضاد استطباب دي. په Hypotension او د زړه په عدم کفايه کې دې په احتياط تجويز شي.

**بلاربښت:** که امکان ولري اجتناب دې ترې وشي، خصوصاً د وريد له لارې، د بلاربښت په لومړيو دريو مياشتو کې ممکن د ولادي سؤ تشکلاتو سبب شي، او که د بلاربښت په دريو وروستيو مياشتو کې تجويز شي، د نوي زيږيدلي ماشوم د وينې تويدنې (خونريزی) سبب کيدلای شي. د بلاربښت په موده کې دې مور ته Folic acid او نوي زيږيدلي ماشوم ته يې په وقايوي ډول Vit.K ورکړل شي.

**د تي ورکول په موده کې:** که امکان ولري اجتناب دې ترې وشي.

**اړخيزې اغيزې:** خوبوړي کيدل(Drowsiness), دماغي Confusion ، ګنګسيت، Ataxia. همدا راز د ډرايورۍ توان هم زيانمنوي. کانګې، Folate ډوله وينه لږی (چې په Folic acid تداوي کيږي)، Acne، د ورويو پړسوب، د بدن د ويښتو وده ډيروي، د لمفاوي عقداتو پړسوب، تبه. د وريد له لارې (په ځانګړي ډول که ډير چټک ورکړل شوي وي): د زړه بې نظمي (Arrhythmia)، د وينې د فشار ټيټوالی، Collapse، تنفسي انحطاط .

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزې:** د Phenytoin اغيزې که Chloramphenicol ،Acetylsalicylic acid، Chlorphenamine، Cimetidine ، Metronidazole، Nifedipine او Isoniazid سره يو ځای ورکړل شي، لوړيږي. که له، Anti-depressant (Amitriptyline) سره يو ځای ورکړل شي، ضد صرعوي اغيزه يې متناقص کيږي. د Doxycycline او Corticosteroid اغيزې متناقصوي.

**Piperazine**
پيپرازين
*Tablets 500 mg*
Oral

**استطباب:** • د اسكاريس چينجي(Roundworm)
• Enterobius (Oxyuris)

**يادونه:** پيپرازين د محدود استعمال له كبله ډير نه استعماليږي، ځكه چې يوازې په اسكاريس او Enterobius ( Pinworm, Oxyuris) اغيزه كوي.

Ascaris

**ماشومان** 75mg/kg ( يو واحد ډوز)
**لويان** 3 g يو واحد ډوز

Enterobius

**ماشومان** 50 mg/kg ( د ورځې يو ځل د پنځو ورځو لپاره)
**لويان** 3g د ورځې يو ځل د پنځو ورځو لپاره

**مضاد استطباب:** په Epilepsy ، د پښتورګو او ينې په عدم كفايه كې مضاد استطباب دي.

**بلاربښت او د تي وركولو په دوره كې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغېزې:** زړه بدوالى، كانګې، نسناستى، حساسيت، جلدي اندفاعات، زيړى، ګنګسيت، حركي عدم توازن ، Mental confusion، د ليدلو ستونزې.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** له نورو درملو سره كوم مهم تعامل منځ نه را منځ ته كوي.

---

**Potassium chloride ***
پوتاسيوم كلورايد
*Tablets 6.7 mmol of K =500 mg*
*Tablets 8 mmol of K=600 mg*
Oral

**استطباب:** • د پوټاسيم كمښت (Hypokalaemia)

☜ له Spironolactone سره دې يو ځاى نه وركول كيږي.

**لويان** (7-15 mmol/day او يا 0.5-1g/day)
۱-۲ تابليته په ورځ كې..

**مضاد استطباب:** د پښتورګو په عدم كفايه كې، Hyperkalemia, په Peptic قرحاتو كې دې په احتياط تطبيق شي.

**بلاربښت او د تي وركولو په دوران كې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغېزې:** د زړه بدوالى، كانګې، د مرۍ او وړو كولمو د قرحاتو خطر، د زړه بې نظمي يا Arrhythmia.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** د Hyperkalaemia د خطر د رامنځ ته كيدو د خطر له امله دې له Potassium-sparing ډيوريټكونو (Spironolactone) سره يو ځاى نه وركول كيږي.

## Prednisolone*

پريدنيسيلون

*Tablets 5 mg*

استطباب:

- حادې ستونزې: • شديده او متوسطه استما • حساسيت • د پاسنيو تنفسي لارو انسدادونه • شديدې وچکې يا محرقه چې له Shock او Confusion سره وي.
- ځنډنۍ ستونزې: • ځنډنۍ وخيمه استما • Nephrotic syndrome• Rheumathoid arthritis • Haemolytic• وينه لږي (کمخوني).

**يادونه:** د Prednisolone 5 mg د التهاب ضد اغيزه مساوي ده له 0.75 mg Dexamethasone او يا 20 mg Hydrocortisone

**د Corticosteroid د تجويز ښه لاره**

هميشه يې په لوړ ډوز پيل کړئ. که Corticosteroid له پنځو ورځو شخه د کم وخت لپاره تجويزوئ، هغه سمدلاسه يا (آنآ) قطع کولای شئ. که هغه د پنځو ورځو نه له ډير وخت لپاره تجويزوئ، د Adrenal د عدم کفايې د خطر له کبله يې، ورو-ورو قطع کړئ. تاسې بايد 5 mg په هرو ۳-۷ ورځو کې کم کړئ.

دا ښه خبره ده چې ډوز د ګهيځ له طرفه په يو ډوز تجويز کړئ. يوازې په ځينو بېړنيو (عاجلو) پېښو کې او د Asthma په ځينو پېښو کې دې ته اړه وي چې په ۳ يا ۴ کسري ډوزونو ورکړل شي.

Oral

**ماشومان او لويان (د پيلو کولو ډوزونه)**

(1-2 mg/kg/day, په ماشومانو کې اعظمي 40 mg/day)

| | | |
|---|---|---|
| ۲-۱۲ مياشتو | 5 mg | د ورځې يو ډوز |
| ۱-۵ کالو | 5-10 mg | د ورځې يو ډوز |
| ٦-۱۲ کالو | 10-30 mg | د ورځې يو ډوز |
| **لويان** | 20-40 mg | د ورځې يو ډوز |

ډوزونه يې نظر استطباب ته يو تر بله ډير تفاوت لري.

**مضاد استطباب:** په بيړنيو حادو پېښو کې مضاد استطباب دي.. اوږده درملنه د Peptic ulcer په پېښو کې مضاد استطباب ده. د نري رنځ په ناروغانو، د وينې لوړ فشار، ويروسي انتانات، Diabetes mellitus، ګلوکوما او Psychosis کې دې هغه وخت تجويز شي، چې ګټه يې نسبت خطر ته واضحاً ډيره وي.

د درملنې په بهير کې دې ژوندي واکسينونه يا Live vaccine (measles او BCG) نه اجرا کيږي او تر دوه اوونيو دې انتظار ويستل شي. هيځکله دې د Corticosteroid اوږده درملنه نه پيل کيږي، تر څو د ژونديو واکسينو له تطبيق څخه ۴ اوونۍ نه وي وتلي.

**بلاربښت او د تي ورکولو په بهير کې:** لنډه درملنه (تر ۵ ورځو) کوم خطر نه لري، خو له اوږدې درملنې دې اجتنا ب وشي.

**اړخيزې اغېزې:** لنډه درملنه (تر ۵ ورځو) اړخيزې اغيزې نه لري، خو لوړ ډوزونه او يا له پنځو ورځو اوږده درملنه لاندې ستونزې را منځ ته کولای شي:

د انتاناتو په مقابل کې د عضويت مقاومت راټيټوي. د ټپونو جوړيدل ځنډوي، د وينې لوړ فشار، اذيما، Cushing syndrome، Diabetes mellitus، Osteoporosis او کسرونه، Psychosis، د وزن ډيروالی، Striae (په بدن کې د ليکو را منځ ته کيدل) Acne، په ماشومانو کې د ودې وروسته والی، Cataract، Peptic قرحات، Hypokalaemia (د پوټاسيم کمښت)، د درملنې د سملاسي (آني) تم کولو په صورت کې د فوق الکليې (Adrenal) د عدم کفاې خطر.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** که له Acetylsalicylic acid او يا NSAIDs (Indomethacin, Ibuprofen Diclofenac) سره يو ځای ورکړل شي، د معدوي وينې تويدنو خطر ډيروي. Phenytoin, Phenobarbital او Rifampicin يې اغيزه کموي. دا درمل کولای شي د خولې له لارې د وينې د تحثر ضد درملو اغيزه کمه کړي.

---

## Probenecid

پروبينا سيد

*Tablets 500 mg*

**استطباب:** • د Gonorrhoea په درملنه کې مرسته کوونکی، تر څو د Ampicillin او يا Penicillin د اغيزې دوام ډير کړي.

يادښت: Probenecid په يوازې ځان په Gonorrhoea کومه ځانګړې اغيزه نه لري.

**د Gonorrhoea په درملنه کې مرسته کوونکی**

په واحد ډوز دې له Penicillin سره يو ځای ورکړل شي.

Oral **لويان** 1 g

**مضاد استطباب:** د يو ډوز (Single dose) تجويز په Gonorrhoea کې بې ضرره دی.

**بلاربښت او تي ورکولو په بهير کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغېزې:** د يو ډوز (Single dose) تجويز په Gonorrhoea کې کومه مهمه اړخيزه اغيزه نه را منځ ته کوي.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې:** له Acetyl salicylic acid سره دې يو ځای نه ورکول کيږي (Antagonistic اغيزه)

**Procaine benzylpenicillin***
پروکائين بينزايل پينسلين
(Procaine Penicillin G)

*Vials 3 M IU*
همدا راز
Procaine benzylpenicillin
يو ځای له
Benzylpenicillin
هم پيدا کيږي، چې د
Procaine penicillin forte (PPF)
ياديږي.
د هغې ګډه په دې کې ده چې اغيزه يې ژر پيل او تأثير يې اوږد وي.
Vials 3 M IU + 1 M IU
IM يوازې

**استطباب:** • متوسط وخيم انتانات چې له Penicillin سره حساس وي: Anthrax, ,Gonorrhoea, Pneumonia, جلدي انتانات، Lymphangitis، تيتانوس • په وقايوي ډول وروسته له مارچيچلو او پرانيستو ټپونو څخه.

- ☜ هيڅکله دې د وريد له لارې نه ورکول کيږي.
- ☜ محلول بايد د ۱۲ ساعتو په اوږدو کې له جوړولو وروسته استعمال شي. (يعنی کله چې ورسره مقطري اوبه يو ځای شي ژرترژره دې په ۱۲ ساعتونو کې استعمال شي)
- ☜ هيڅکله د حساسيت د معلومولو لپاره جلدي ټسټ مه اجرأ کوئ.

دا صحيح نه دی او خطر ناک هم دی. پخپله دا ټسټ د دې سبب کيدلای شي چې ناروغ د پنسلين په مقابل کې حساس کړي. په حساسو ناروغانو کې د مړينې سبب کيدلای شي.

**خرنګه پوهيدلای شئ چې ناروغ له Penicillin سره حساسيت لري؟**

تر ټولو ښه لاره دا ده چې په دې هکله د ناروغ د تاريخچې پوښتنه وکړئ. که د پنسلينو سره د حساسيت کوم دليل مو وموند، هيڅ ډول Penicillin مه ورکوئ، په عوض يې يو بل Alternative يا معاوضوي درمل تجويز کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| **ماشومان** | 50,000-100,000 IU/kg) | د ورځې يو ځل) |
| ۲-۱۲ مياشتو | 300,000-500,000 IU | د ورځې يو ځل |
| ۱-۵ کالو | 1000,000 IU(1 M IU) | د ورځې يو ځل |
| ٦-۱۲ کالو | 1,5000,000 IU (1.5 M IU) | د ورځې يو ځل |
| **لويان** | 1-4 M IU | د ورځې يو ځل |

**مضاد استطباب :**
له پنسلين سره حساسيت.

د ډيرو معلوماتو لپاره Penicillin V ته مراجعه وکړئ. (۴۹ مخ).

---

**Promethazine***
پروميتازين
*Tablets 25 mg*
*Syrup 5 mg/5 ml*
*Ampoules of 2 ml*
50 mg چې (=25 mg/ml) لري.
Oral

**استطباب:** • حساسيت • زړه بدوالی او کانګې • Sedation

- ☜ دا درمل د خوبوري کيدو سبب کيږي، ډريوران په دې هکله وپوهوئ.
- ☜ له ٦ مياشتو کوچنيو ماشومانو ته دې نه ورکول کيږي.

**حساسيت او کانګې**

**ماشومان** (1 mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو)

١-٥ کالو 2.5-7.5 mg د ورځې دوه ځلې
٦-١٢ کالو 5-12.5mg د ورځې دوه ځلې
لويان 25 mg د ورځې دوه ځلې

Sedation
ماشومان (1-2 mg /kg) يو واحد ډوز يوازې د خولې له لارې
١-٥ کالو 5-15 mg يو واحد ډوز يوازې د خولې له لارې
٦-١٠ کالو 10-25 mg يو واحد ډوز يوازې د خولې له لارې
لويان 25-50 mg يو واحد ډوز

**IV/IM**

IV او IM ډوزونه د فمي ډوزونو مشابه دي چې بـره د حساسيت او کانګو تر عنوان لاندې ذکر شوي دي، خومره چې ژر کيدای شي پـه فمي ډوزونو دې بدل کړای شي.
د حساسـيت پـه شـاکونو (Allergic shock) کـې دې مرجحـاً Corticosteroid او Adrenaline تجويز شي.
له ډيرو معلوماتو لپاره Chlorphenamine ته مراجعه وکړئ.(٢٠ مخ)

---

**Propranolol***
پروپرانولول
*Tablets 10, 40 and 80 mg*

اســتطباب: • د ويــنې لــوړ فشــار • Anxiety او د زړه ټکــان يــا Palpitation • د Migraine د مخنيوي لپاره (په هغه صورت کې چې په يوه مياشت کې يې دوه حملې منځ تـه راشـي دا درمـل دې وازمايل شـي). • Angina • لـه Myocardial infarction څخـه وروسته وقايه.

**Oral**

Hypertension
لويان 80 mg د ورځې دوه ځلې
هره اوونۍ د هغې مقدار زيات کړئ د هغې تر اعظمي ډوز، 320mg پورې دوه ځلې په ورځ کې ، تر څو چې فشار کنترول شي.
Anxiety او Palpitation
لويان 40 mg د ورځې دوه ځله تجويز شي.
وقايهٔ Migraine ( د ٢-٣ مياشتو پورې دې تجويز شي)
ماشومان
له شپږو کالو لوی 10 mg د ورځې دوه ځلې
لويان 40-80 mg د ورځې دوه ځلې
Angina او له Myocardial infarction وروسته وقايه
لويان 80 mg دوه ځلې د ورځې
د ډيرو معلوماتو لپاره Atenolol ته مراجعه وکړئ. (١٦ مخ)

---

**Pyrantel***
پيرينټل
*Tablets 125 and*

استطباب: • چينجي (Helminths): اسکاريس (Roundworm) ، Hookworm, Trichuris (Whipworm)
Enterobius (Pinworm, Threadworm, Oxyuris)

250 mg

Oral

**ماشومان او لویان** (10 mg/kg)

۱۲-۷ میاشتو 62.5 mg

۱-۵ کالو 125 mg

۱۲-٦ کالو 250 mg

**لویان** 500 mg

**اسکاریس او** Enterobius

**یو واحد ډوز. په Enterobius کې دې دوه اوونۍ وروسته تکرار شي.**

Hookworm او Whipworm

**د ورځې یو ځل د درې ورځو لپاره**

**مضاد استطباب:** د ینې په عدم کفایه کې دې په احتیاط تطبیق شي. له شپږو میاشتو وړو ماشومانو کې دې نه تجویزیږي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په وخت کې دې ترې اجتناب وشي، ښه دا ده چې د لنګون پورې دې انتظار وشي.

**د تې ورکولو په بهیر کې :** مضاد استطباب نه دي.

**اړخیزې اغېزې:** بطني Cramp، د زړه بدوالی، کانګې، نسناستی، سرخوږی، ګنګسیت.

**له نورو درملو سره یوځایي اغېزې:** له اکثرو درملو سره کوم مهم تعامل نه رامنځ ته کوي.

---

**Pyrazinamide***

پیرازین امایډ

Tablets 500 mg

Oral

**استطباب:** • نرې رنځ (توبرکلوز)

☜ همیشه دې د نرې رنځ له نورو درملو سره د سټنډرډ لارښود مطابق یو ځای شي، ۹٦ مخ ته دې مراجعه وشي.

**د صحیح ډوز لپاره دې ۹٦ مخ ته مراجعه وشي (د توبرکلوز ضد درملو معقول تجویز)**

**مضاد استطباب:** د ینې په حادو ناروغیو کې دې نه ورکول کیږي.

**بلاربښت او تې ورکولو په دوران کې :** مضاد استطباب نه دي.

**اړخیزې اغېزې:** زیړی، د زړه بدوالی، کانګې، نسناستی، د مفصلونو دردونه، جلدي اندفاعات، نقرص.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** له نورو درملو سره کوم مهم تعامل نه رامنځ ته کوي.

**Pyridoxine***
پايری أوكسين
(Vitamin $B_6$)
*Tablets 25 and 50 mg*

Oral

**استطباب:** • د ويټامين $B_6$ د کمښت يا فقدان درملنه او مخنيوی
• Neuropathy چې د Isoniazid له کبله منځ ته راغلی وي.
☜ د هغو اميدوارو ميندو لپاره چې Isoniazid يا د صرعې ضد درمل اخلي د بلاربښت په بهير کې دې تجويز شي.

**د Vit. $B_6$ د فقدان مخنيوی**
**ماشومان** 12.5 mg د ورځې يو ځل
**لويان** 25 mg د ورځې يو ځل
**د Isoniazid neuropathy درملنه**
**ماشومان** 25-50 mg د ورځې يو ځل
**لويان** 100 mg د ورځې يو ځل

**مضاد استطباب:** نه لري.
ښه زغمل يا تحمل کيږي.

## Quinine*

کونين

*Tablets 200 mg and 300 mg*

*Ampoules of 2ml 300mg*چې

*(=150 mg/ml)*

Ampoules om ٢f l

*600 mg*او

*(=300 mg/ml)*

لري.

**استطباب:** • د وخيمې او اختلاطي ملاريا درملنه.

☜ بايد د اوو ورځو لپاره ورکړل شي او په تعقيب يې Fansidar تجويز شي اويا په لويانو کې دې پـه Doxycycline د اوو ورځو لپاره تعقيب شي.

**Oral**

**ماشومان** (30 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو)

۲-۱۲ مياشتو 50 mg د ورځې درې ځلې

۱-۵ کالو 100-150 mg د ورځې درې ځلې

۶-۱۲ کالو 150-300 mg د ورځې درې ځلې

**لويان** 600 mg د ورځې درې ځلې

**IM**

له پنځو کالو وړو ماشومانو کې Quinine د عضلي زرقياتو لپاره 60 mg/ml نري (رقيق) کړئ. د 2 ml امپول چې 150 mg/ml لري له 3 ml سوډيم کلورايد 0.9% سره رقيق کړئ. 2 ml امپول چې 300 mg/ml لري، په 8 ml سوډيم کلورايد 0,9 % سره رقيق کړئ.

10 mg/kg د ورځې درې ځله استعمال کړئ، تر څو چې نـاروغ يې د خولې له لارې واخستلی شي. عضلی او فمي ډوزونـه سـره يـو شان دي.

**IV**

☜ د وريـد لـه لارې يـې پـه يـو Infusion کـې ډېـر ورو ورکړئ.

☜ هيڅکله بـل ډوز لـه څلـورو سـاعتو کـم وخـت کـې مـه تجويزوئ.

☜ Hypoglycaemia (د وينې د ګلوکوز کمښت) مـو پـه نظر کې وي.

**ماشومان او لويان**

10-20 mg/kg په 5% ګلوکوز کې په ۴ ساعتونو کـې شـروع کـړئ (د لويانو اعظمی ډوز 1.4 g)

وروسته 10 mg/kg په ۴ سـاعتونو کـې هـر ۸ تـر ۱۲ سـاعته ادامـه ورکړئ، تر څو ناروغ د خولې لارې Quinine واخستلای شي.

**مضاد استطباب:** Haemoglobinuria

**بلاربښــت:** احتیــاط، خــو پــه هغــه صــورت کــې چــې ګټــه یــې نســبت زیــان تــه ډیــره وي. د Hypoglycaemia خطر موجود دی.

**د تي ورکولو په بهیر کې:** مضاد استطباب دي.

**اړخیــزې اغېــزې:** Tinnitus، کنیــدل، ســرخوږی، کــانګې، ګنګســیت، ســرګرځیدل (Vertigo). اکثراً Hypoglycaemea معمولاً له وریدي زرقیاتو وروسته، وخیم Hypotension په هغــه صــورت کې چې محلول ډیر چټک تطبیق شوی وي.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغیزې:** د Digoxin د پلازمـا غلظـت لـوړوي. د Digoxin ډوز نیم کړئ.

---

**Ranitidine**
رانتیډین
*Tablets 150 and 300 mg*

**استطباب:** • د Peptic تپونو درملنه او وقایه،
• Reflux oesophagitis

Oral

**لویان** 150 mg د ورځې دوه حله
**اویا** 300 mg د ورځې یو ځل د شپې له طرفه.
Peptic قرحات باید لږترلږه د ۴ اوونیو لپاره تـداوي شـي. د وقـایې لپاره 150 mg یو ځل د شپې.
د ډیرو معلوماتو لپاره Cimetidine ته مراجعه وکړئ. (۲۲ مخ)

---

**Retinol***
ریتینول
*(Vitamin A)*
*Capsules 100,000 and 200,000 IU*

**استطباب:** • د Vitamin A د فقدان درملنه او مخنیوی

☜ که تاسې 200,000 IU کپسول له یو کال کوچني ماشوم تــه تجویزوئ. د هغې دوه څاڅکي تقریبـاً 50.000 IU لـري او ۴ څاڅکي یې تقریباً 100.000 IU لري.

☜ هیڅکله له ښودل شوي ډوز څخه ډیر مه ورکوئ.

☜ د بلاربښت په وخت کې یې مه تجویزوئ.

Oral

د ډوزونو او درملنې د دوام لپاره د هغې ځانګړي استطباب تــه چــې لاندې ذکر کیږي، مراجعه وکړئ:

**ماشومان چې له یو کال لږ عمر ولري:**

| | |
|---|---|
| له شپږو میاشتو کوچني | 50.000 IU |
| ۷-۱۲ میاشتو | 100.000 IU |

**ماشومان چې له یو کال لوی وي او لویان**
200. 000 IU

**د ویټامین A فقدان**

**هغه ماشومان چې نسناستی یا وخیم انتان ولري:**
یوازې یو واحد ډوز.

**هغه ماشوم چې شری لري:**
د ورځې یو ځل د دوو ورځو لپاره

**وخیمه سؤ تغذي:**

د ورځې یو ځل، لومړۍ ورځ، دویمه ورځ او وروسته له یوې اوونۍ. شخه. یو واحد ډوز وروسته له ځلورو اوونیو تکرار کړئ.

**هره ښځه له لنګون شخه تر یوې میاشتې وروسته پورې:**

400.000 IU یوازې یو واحد ډوز.

**د ویټامین A د فقدان درملنه:**

د ورځې یو ځل، لومړۍ ورځ، دویمه ورځ او وروسته لـه یـوې اوونـۍ. شخه. یو واحد ډوز وروسته له ځلورو اوونیو تکرار کړئ.

**مضاد استطباب:** له ټاکل شوو اندازو شخه دې ډیر نه ورکول کیږي.

**بلاربښت:** د بلاربښت په وخت کې تر څو چې اساسي ضرورت نه وي مضاد استطباب دي او په هغه صورت کې دې په ورځ کې له 10.000 IU ډیر نه ورکول کیږي ( Teratogenicخطر)

**د تي ورکولو په بهیر کې:** مضاد استطباب نه دي.

**اړخیزې اغېزې:** د لوړ ډوز په صورت کې د کوپړۍ (قحف) دننـي فشار لوړوي. سرخوږی، زیږ پوستکی، د ویښتانو وچوالی او Hepatomegaly.

**له نورو درملو سره یو ځایي اغېزې:** له نورو درملو سره یو ځای کوم مهم تعامل نـه را منځ تـه کوي.

---

## Rifampicin*

ریفا مپسن

*Capsules 150, 300 and 450 mg*

Oral

**استطباب:** • نری رنځ (توبرکلوز) • Brucellosis

☜ په نري رنځ کې دې همیشه له توبرکلوز ضد نورو درملو سره د کره (ستنډرډ) لارښود مطابق یو ځای ورکړل شي. ۹٦ مخ تـه دې مراجعه وشي.

**نری رنځ (توبرکلوز)**

**د صحیح ډوز لپاره دې ۹٦مخ تـه مراجعـه وشـي (د نـري رنـځ ضـد درملو لیکل)**

Brucellosis

**ماشومان** 20 mg/kg د ورځې یو ځل د ٦-١٢ اوونیو پورې.

**لویان** 900 mg د ورځې یو ځل د ٦-١٢ اوونیو پورې.

همیشه دا درمل له ۸ کالو کوچنیو ماشومانو ته له Co-trimoxazole او یا Streptomycin او پـه لویـانو کـې لـه Doxycycline سره یو ځای کړئ.

**مضاد استطباب**: د ينې وخيمې ناروغي.

**بلاربښت او د تي ورکولو په بهير کې**: مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغېزې**: زيړى، کانگې، نسناستى، د تشو ميتيازو نارنجي رنگه کيدل.

**نادراً**: Influenza ډوله سندروم له تبې سره، Thrombocytopenia تنفسي تشوشات او د ميتيازو کميدل (Oliguria).

**له نورو درملو سره يو ځايي اغېزې**: د Nifedipine ،Doxycycline ،Aminophylline, د شکرې د ناروغۍ ضد فمي درمل، Phenytoin او د وينې د تحثر ضد فمي درملو اغيزه کموي. نو له همدې کبله دې د نوموړو درملو ډوز لوړ کړای شي. هميشه بايد Rifampicin له انتاسيدو سره په دوه ساعتو فرق ورکړل شي، يعنې دوه ساعته وروسته او يا دوه ساعته مخکې.

---

## Salbutamol*

سالبيوټامول

*Spray 100 microgram/puff*
*Tablets 2 and 4 mg*
*Ampoules of 1 ml*

چې (=500 microgam) 0.5 mg لري.

**استطباب**: • استما • له وخت نه مخکې لنگون.

**يادونه**: Salbutamol ځينې وختونه له دوو کالو کوچنيو ماشومانو باندې اغيزه نه کوي.

INH

**استما**

**ماشومان او لويان**

يو نه تر دوه Puff د ضرورت په وخت کې.

په عاجلو پېښو کې تر 20 Puff هم ورکول کيدای شي.

(۷) مخ د انشاقي درملو د سم استعمال برخې ته دې مراجعه وشي.

Oral

**ماشومان** (0.3 mg/kg) په ۳ کسري ډوزونو)

۲-۵ کالو 1-2 mg د ورځې درې ځله

۶-۱۲ کالو 2 mg د ورځې درې ځله

**لويان** 2-4 mg د ورځې درې ځله

IV/IM

**د وخت نه مخکې لنگون د مخنيوی لپاره بيړنۍ (عاجله) درملنه**

د وينې فشار، نبض او د جنين د زړه ټټکتيا دې د درملنې په بهير کې له نږدې وڅارل شي. که د مور نبض ۱۲۰ ته په يوه دقيقه کې ورسيږي، نور ډوز مه لوړوئ.

5 mg (10 امپول) په 500 ml ۵% Glucose محلول کې واچوئ د وريد له لارې درملنه 30-40 څاڅکي په يوه دقيقه کې پيل کړئ او ورو ورو دې څاڅکي زيات شي، تر څو د زيلانځ (رحم) تقلصونه تم (متوقف) شي. له هغې وروسته دې د درملو اندازه کمه

| | |
|---|---|
| | کړای شي، او وروسته دې د عضلي زرق په شکل 0.5 mg د ورځې ۴ ځله ورکړل شي. او بالخره دې د خولې له لارې 1-2 mg د ورځې ۴ ځله توصيه شي. |

**مضاد استطباب**: په Myocardial infarction کې مضاد استطباب دي. د وينې د لوړ فشار په پېښو کې، Arrhythmia، د زړه عدم کفايې ,Diabetes او Hyperthyroidism کې دې احتياط وشي.

**بلاربښت او تي ورکولو په بهير کې**: مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغېزې**: Tachycardia, لړزه، ګنګسيت، سرخوږ، عصبانيت، د زړه ټکان. کـه هميشـه استعمال شي، د درملنې اغيزه يې کميږي. درملنه له څو ورځو لپاره ودروئ.

**له نورو درملو سره يو ځايي اغيزه**: له نورو درملو سره کوم مهم تعامل نه را منځ ته کوي.

| | |
|---|---|
| **Spironolactone***<br>*سپايرونالیکتیون*<br>*Tablets 25 and 50 mg*<br>Oral | **استطباب**: • په Nephrotic syndrome او د ينې په ناروغيو کې اذيما او حبن (Ascites).<br>**ماشومان** 2 mg /kg/day په ۲-۳ کسري ډوزونو<br>**لويان** 100-200 mg د ورځې يو ځل د شپږو ورځو لپاره وروسته 50-100 mg |

**مضاد استطباب**: په Hyponatraemia, Hyperkalaemia، د پښتورګو په وخيمه عدم کفايه کې مضاد استطباب دي. د ينې په وخيمه عدم کفايه کې دې احتياط وشي.

**بلاربښت او تي ورکولو په موده کې**: مضاد استطباب نه دي.

**اړخيزې اغېزې**: معدي معايي تشوشات، جنسي عدم اقتدار ، Gynaecomastia، د ښځو د مياشتني عادت ګډوډيدل، Hyperkalaemia ،Hyponatraemia.

**له نورو درملو سره يوځايي اغېزې**: د زړه د Glycoside (Digoxin) اغيزه زياتوي، د تسمم خطر. د Potassium chloride سره دې يو ځای نه ورکول کيږي، ځکه چې د Hyperkalaemia سبب کيږي.

| | |
|---|---|
| **Streptomycin***<br>ستريپټومايسين<br>*Vials 1g*<br><br>IM | **استطباب**: • (نرى رنځ) توبرکلوز • Brucellosis<br>☜ هيڅکله دې د غير وصفي انتاناتو لپاره نه توصيه کيږي.<br>☜ په نري رنځ کې دې هميشه له توبرکلوز ضد نورو درملو سره د کره (ستنډرډ) لارښود مطابق يو ځای ورکړل شي. ٩٦ مخ ته دې مراجعه وشي.<br>☜ محلول دې يوازې تر يو ساعت پورې وروسته له جوړيدلو استعمال شي، يعنې که بيا استعمال يې له يو ساعت ډير وخت نيسي نو نوی محلول دې جوړ شي.<br>**نري رنځ (توبرکلوز)**<br>☜ د صحيح ډوز لپاره دې ٩٦مخ ته مراجعه وشي (د نري رنځ |

ضد درملو معقول تجويز)
Brucellosis

**ماشومان** 15 mg/kg د ورځې يو ځل

**لويان** 1g د ورځې يو ځل

همېشه دا درمل له ۸ کالو کوچنيو ماشومانو ته له Co-trimoxazole او له ۸ کالو غټو ماشومانو او لويانو کې له Doxycycline سره په لومړيو ۲۱ ورځو کې يو ځای کړئ.

د ډېرو معلوماتو لپاره دې Gentamicin (۳۳ مخ) ته مراجعه وشي.

---

## Sulfadoxine + Pyrimethamine*

سولفاډوکسين + پايريميتامين

(Fansidar)

(فينسيډار)

*Tablets(500 mg sulfadoxine+25 mg pyrimethamine)*

Oral

**استطباب:** • له کلوروکينو سره مقاومې ملاريا درملنه، د Plasmodium falciparum د ډول ملاريا

☜ د بلاربنت په بهير او په هغو ماشومانو کې چې عمر يې له ۲ مياشتو کم وي نه دې تجويز کيږي.

**ماشومان**

| | | |
|---|---|---|
| له ۲ تر ۴ کالو | 1/2 | ټابليټ يو واحد ډوز |
| ۵-۶ کالو | 1 | ټابليټ يو واحد ډوز |
| ۷-۹ کالو | 1.5 | ټابليټ يو واحد ډوز |
| ۱۰-۱۴ کالو | 2 | ټابليټ يو واحد ډوز |
| **لويان** | 3 | ټابليټ يو واحد ډوز |

**مضاد استطباب:** د پښتورګو او ينې عدم کفايه، زيړی، د وينې تکليفونه، له ٦ اوونيو کوچني ماشومان.

**بلاربنت:** مضاد استطباب دي.

**د تي ورکولو په بهير کې:** د تي ورکولو په بهير کې دې نه ورکول کيږي، ځکه په زيړي درلودونکو ماشومانو کې د Kernicterus خطر او د G6PD په کمښت اخته ماشومانو کې د Haemolysis خطر تر يوې اندازې موجود دی.

**اړخيزې اغېزې:** نساستی، د زړه بدوالی، کانګې، جلدي اندفاعات (ځينې وخت وخيم) د وينې تکليفونه (د Agranulocytosis په شمول )، د G6PD په کمښت کې Haemolysis.

**له نورو درملو سره يوځايي اغېزې:** له Co-trimoxazole سره دې په يو وخت نه ورکول کيږي ، ځکه چې د اړخيزو اغېزو خطر زياتوي.

---

## Tetracycline

ټيتراسايکلين

**استطباب:** • ځنډنی معند Bronchitis • Sinusitis

• Mycoplasma pneumonia •د حوصلې التهابي ناروغی.

• Unspecific urethritis •برو سيلوزس • کولرا • Acne

| | |
|---|---|
| *Capsules/ Tablets 250 mg* | •Chlamydiaانتانات • Gonorrhoea • سيفلس، په هغه صورت کې چې د پنسلينو په مقابل کې حساسيت موجود وي او يا ناروغ مقاوم وي.<br>☜ د بلاربنت په بهير او په هغو ماشومانو کې چې عمر يې له ۸ کالو کم وي مه يې تجويزوئ.<br>☜ که تاريخ يې تير شوی وي مه يې استعمالوئ.<br>☜ کـه د لاسـغزونې وړ وي دTetracycline پـه ځـای کـه Doxycycline د ښه جذب له کبله استعمال شي، ښه ده. |
| Oral | **لويان** 250 mg د ورځې څلور ځلې<br>په وخيمو انتاناتو کې ډوز دوه چنده کړئ.<br>د ډيرو معلوماتو لپاره Doxycycline ته مراجعه وکړئ. (۲۸ مخ) |

**مضاد استطباب:** له ۸ کالو کوچنيو ماشومانو او د بلاربنت په بهير او د پښتورګو په عـدم کفايـه کې مضاد استطباب دي.

**بلاربنت:** مضاد استطباب دي. د نوي زيږيدلي سکليټ او وده اغيزمنـه وي، او وروسـته د ماشـوم د هميشني غاښونو د رنګه کيدو سبب کيږي.

**د تي ورکولو په بهير کې:** مضاد استطباب دي..

**اړخيزې اغېزې:** نسناستی، د زړه بدوالی، کانګې، سرخوږی، د ليدو ستونزې.

**له نورو درملو سره يوځايي اغيزې:** که واضح استطباب نه وي موجود، له نـورو انټـي بـايوټيکو سره دې نه يوځای کيږي. انټاسيد، شيدې او اوسپنه يې جذب کموي، لـه هغـوی نـه دې دوه سـاعته مخکې يا وروسته ورکړل شي. د Tetracycline اغيزه په هغو ناروغانو کې چې Phenobarbital, Carbamazepine, Rifampicin يا Phenytoin اخلي کميږي.

| | |
|---|---|
| **Thioacetone***<br>تياوسيټون | Isoniazid+ Thioacetone ته دې مراجعه وشي. |
| **Tinidazole**<br>تينيډازول<br>*Tablets 500 mg* | اســـــتطباب: • Amoebic ډيزانتـــــری • Giardiasis<br>• Trichomoniasis |
| Oral | Giardiasis او Trichomoniasis<br>**ماشومان** 50 mg/kg يو واحد ډوز<br>**لويان** 2 g يو واحد ډوز<br><br>**Amoebic ډيزانتري**<br>**ماشومان** 50 mg/kg د ورځې يو ځل د ۳ ورځو لپاره<br>**لويان** 2 g د ورځې يو ځل د ۳ ورځو لپاره<br>د ډيرو معلوماتو لپاره Metronidazole ته مراجعه وکړئ. (۴۳ مخ) |

| | |
|---|---|
| Vitamin A* | *Retinol ته دې مراجعه وشي. (٦١ مخ) |
| **Vitamin B*** | *Multivitamins ته دې مراجعه وشي. (۴۵ مخ) |
| **Vitamin $B_6$*** | *Pyridoxine ته دې مراجعه وشي. (۹مخ) |
| **Vitamin C*** | *Ascorbic acid ته دې مراجعه وشي. (١٦ مخ) |

## ث - جلدي مستحضرات (Skin Preparations)

د ميکروب ضد کريمونه (Antibiotic cream) لکه د Tetracycline مرحم بايد استعمال نه شي، د استعمال لپاره کوم دليل نه لري، ځکه چې د باکترياو د مقاومت سبب کيږي او همدا راز کيدلای شي سړی د انتي بايوټيو سره کله چې له سيستميکې (Systemic) لارې استعماليږي، حساس کړي.

په عوض کې کولای شئ له Antiseptic (لکه Gentian violet) څخه او که استطباب يې موجود وي له سيستميک (فمی يا زرقی) Antibiotic څخه کار واخلئ.

| | |
|---|---|
| **Benzoic acid 6% + Salicylic acid* 3%**<br>بنزيک اسيد +<br>سالي سيلک اسيد<br>(Whitfield's ointment)<br><br>*Ointment* | **استطباب:** • د جلد يا سر فنکسي انتانات (Ringworm).<br><br>لږترله لږه دې د درې اوونيو پورې د ورځې دوه ځله موضعی تطبيق شي.<br>که سيستميکې درملنې ته اړه وي له Griseofulvin څخه کار واخلئ. |
| **Benzyl benzoate***<br>بنزايل بنويټ<br>*Lotion 25 % or 90 %* | **استطباب:** • Scabies • د سپږو انتانات يا Lice infestation<br><br>**90%** محلول څرنګه نری (رقيق) کولای شئ:<br>که تاسې 90 % محلول استعمالوئ، هغه بايد نری يا رقيق کړئ:<br>د 1:8 نريوالي يا رقاقت لپاره يوه برخه سلوشن له اوو مساوي برخو اوبو سره ګډ کړئ.<br>د 1:4 نريوالي يا رقاقت لپاره يوه برخه سلوشن له درې مساوي برخو اوبو سره ګډ کړئ.<br>**څرنګه بايد تطبيق شي؟**<br>۱- ټول بدن دې پريمينځل شي.<br>۲ - په محلول دې ټول بدن پرته له مخ او مخاطي غشأ څخه ککړ شي.<br>۳- د ۲۴ ساعتو پورې دې درمل همداسې پرېښودل شي. (که ناروغ له دوه کالو کوچنی ماشوم وي، له ۱۲ ساعتو پورې).<br>۴- بدن دې يو وار بيا پريمينځل شي.<br>۵- ناروغ دې دا عمليه بله ورځ بيا تکرار کړي.<br>ناروغ وپوهوئ، چې کيدای شي خارښت څو اوونۍ نور هم دوام وکړي. |

Scabies

**ماشومان**

25% لوشن، مساوی مقدار اوبه په لوشن کې ګډې کړئ.

90% لوشنځ په 1:8 نريوالي يا رقاقت دې و کارول شي.

**لويان**

25% لوشن، لوشن دې خالص وکارول شي.

90% لوشن، په 1:4 نريوالي يا رقاقت دې وکارول شي.

Lice (سپږې)

**ماشومان او لويان:**

25% لوشن، لوشن دې خالص وکارول شي.

90% لوشن په 1:4 نريوالي يا رقاقت دې وکارول شي.

---

**Calamine***

کا لا ماین

*Lotion 15 g/100 ml*

**استطباب:** • خارښت • Eczema • Psoriasis •ګرمکې.

د ورځې دې درې ځلې استعمال شي.

---

**Clotrimazole**

کلوټريمازول

*Cream 1%*

**استطباب:** • فنګسونه او Yeast انتانات.

د ورځې ۲-۳ ځلې. لږترلږه دې اووه اوونۍ د آفت تر جوړېدو وروسته هم په موضعي ډول استعمال شي.

---

**Gentian violet***

جنشين وايليټ

(Crystal violet)

*Solution 0,5 %*

**استطباب:** • فنګسي انتانات (فمي او مهبلي Candidiasis) • د خولې ټپونه • جلدي انتانات (لکه Impetigo) • سوزيدنې او سربيرن (سطحي) ټپونه • د جلد لامده ټپونه.

**يادښت:** په ياد مو وي چې Gentian violet د فنګس ضد (Anti-fungal) ، انتي سيپټيک او وچونکي درمل دي.

☜ د خولې په ټپونو کې محطاط اوسئ: هغه محلول چې ټينګوالی (غلظت) يې ۱% څخه لوړ وي پخپله د خولې د مخاطي غشأ د ټپونو د رامنځ ته کيدو سبب کيدلای شي.

**0.5% محلول څرنګه جوړولای شئ؟**

۱. له پوډرو ډکه يوه سيپۍ (کاچوغه) په يو ليټر (۴ ګيلاسه) پاکو خوټېکيدلو اوبو کې ګډ کړئ.

۲. ښه يې ولړئ، پريږدئ، چې په تل کې کښيني.

۳. د يو نخي ټوکر څخه يې چڼ کړئ، او يا يې په ډير احتياط په يو بل لوښي کې واچوئ، تر څو رسوب يې جلا شي.

له جوړ شوي محلول څخه دې له دوو اوونيو څخه تر ډيره وخته استفاده و نه شي.

| | |
|---|---|
| | د ورځې دې دوه ځلې په ماوفه ناحيه تطبيق شي.<br>فنګسي انتانات لږترلږه د ۱۰ ورځو لپاره تداوي کړئ. |
| **Hydrocortisone***<br>هايدروکورتيزون<br>*Cream 0,5% and 1%* | استطباب: • په خفيفو التهاباتو او جلدي خارښتونو کې، د Eczema، الرژيک Dermatitis او يا Psoriasis په شمول.<br>☜ د شديدو اړخيزو اغيزو له کبله دې، يوازې هغه وخت وکارول شي، چې تاسې يې په قطعی استطباب متيقين اوسئ.<br>☜ هيڅکله دې په باکتريايي، ويروسي او فنګسي انتاناتو کې نه استعماليږي، ممکن د انتان د ډير خپريدو سبب شي او يا د هغې تشخيص ډير مشکل کړي.<br>☜ هيڅکله دې په وسيعو ساحو او پرانستو ټپونو کې نه استعماليږي، ځکه چې د ۳۵% په حدود کې جذبيږي او ممکن د سيستميک تسمم سبب شي.<br>☜ 1 % کريم دې يې په مخ کې نه استعماليږي.<br>☜ له اوو ورځو څخه دې ترې ډير کار نه اخيستل کيږي.<br>ډير لږ، د ورځې دوه ځله په مطلوبه ساحه کې تطبيق او ډير ورو دې ومښل شي. |
| **Salicylic acid***<br>سالی سليک اسيد<br>*3-5% in vaseline, Solution 5%* | استطباب: • د جلد تفلسي ناروغی لکهPsoriasis.<br>☜ هيڅکله دې په پراخه ساحه کې نه استعماليږي، ځکه چې جذبيږي او د تسمم خطر را مينځ ته کوي.<br>☜ په چاودلي پوستکي دې نه تطبيقيږي.<br>په ماوفه ساحه کې دې د ورځې ۱-۲ ځلې تطبيق شي. |
| **Zinc oxide***<br>زينک اوکسايد<br>*Cream or ointment* | استطباب: • د لمر له وړانګو څخه محافظت کوونکی • د برسيرنو يا سطحي ټپونو درملنه<br>• فشاري ټپونه.<br>☜ په اوبو ورکوونکو (Oozing) جلدي آفاتو کې دې نه استعماليږي.<br>د ورځې دې درې ځلې تطبيق شي. |

## چ- د سترګو درمل (Eye drugs)

د سترګو اکثر خاص محلولونه لکه Corticosteroid، Mydriatics ښه ده چې د سترګو متخصصین تجویز کړي، ځکه چې وخیمې اړخیزې اغیزې را منځ ته کوي.

| | |
|---|---|
| **Gentamicin***<br><br>*Eye drops 0.3%* | **استطباب:** • د سترګو انتانات.<br><br>یادښت: د Gentamicin د سترګو څاڅکي، د غوږونو لپاره هم کاریدلای شي، خو د غوږونو څاڅکي د سترګو لپاره مه کاروئ.<br>په هر ساعت کې دوه څاڅکو باندې درملنه پیل، کله چې میکروبي پېښه لږه ښه شوه هر شپږ ساعته وروسته یې تطبیق کړئ. درملنه دې لږترلږه دوه ورځې د پېښې له ښه کیدو وروسته هم اجرأ شي. |
| **Tetracycline***<br><br>*Eye Ointment 1 %* | **استطباب:** • د نوي زیږیدلي ماشوم د سترګو د انتان مخنیوی • د سترګو سربیرن یا سطحي انتانات (لکه Conjunctivitis او Trachoma).<br>**د نوي زیږیدلي ماشوم د سترګو د انتاناتو مخنیوی**<br>له زیږیدلو څخه تر یو ساعت پورې موده کې:<br>د نوي زیږیدلي دواړه سترګې په پاکو مالوچو پاکې کړئ، وروسته یو ځل د Tetracycline مرحم د ماشوم په دواړه سترګو کې تطبیق کړئ.<br>Conjunctivitis<br>د ورځې ۳-۴ ځلې د یوې اوونۍ لپاره او یا لږ تر لږه د اعراضو د له منځه تلو څخه تر دوه ورځو پورې.<br>Trachoma<br>د ورځې دوه ځلې د شپږو اوونیو پورې دې تطبیق شي. |

## ځ- زرقي محلولات (Infusion Solutions)

**په عمومي ډول يوازې درې ډوله محلولونو ته اړه پېښيږي:**

۱- د اوبـو د ضـايعاتود اعـادې (Rehydration) لپـاره د وخـيم (Dehydration) پـه پېښـو کـې: Ringer-lactate

۲- پـه Hypovolaemic shock (ترضيضـات، جراحـي، Sepsis) پېښـو کـې د مايعـاتو د تـأمين لپاره: Polygeline (Haemacel)

۳- د نورو درملو د تطبيق د وسيلې لپاره د Infusion په شکل: لکه Glucose 5% اويا Sodium chloride 0.9%

☜ په ياد مو وي: معمولاً ۲۰ څاڅکي يو ملي ليتر کيږي. (1 ml = 20 څاڅکي).

---

**Glucose 5 %*** يا

**(Dextrose 5 % =Isotonic solution)**

*500 ml , 1000 ml*

بوتلونه او کڅوړې

**استطباب:** • د نورو زرقـي درملـو د تطبيـق لپـاره د يـو وسـط يـا وسيلې په څير استعماليږي.

☜ د Dehydration د درملـنې لپـاره دې تـرې کـار نـه اخيستل کيږي، ځکه چې Electrolyte نه لري.

☜ د Hypoglycaemia د درملنې لپاره مناسب نه دي.

د ګلوکـوز ځيـنې محلولونـه د Sodium chloride (Nacl) درلودونکي دي او ځينې Potassium chloride (KCl) لري. چـې دوی پـه معاوضـوي ډول Ringer-lactate پـر ځـای تجويزيږي. که د درملو د تطبيق ضرورت وي لـه هغـه محلـول نـه چې KCl و نه لري بايد کار واخستل شي.

---

**Polygeline***

پالي جلين

**(Haemacel)**

هيما سيل

*500 ml*

بوتلونه او کڅوړې

**استطباب:** • د Hypovolaemic shock (ترضيضـات، جراحـی او Sepsis) په پېښو کې د بدن د مايعاتو تأمين.

Haemacel تـر هغـې چـې د نـاروغ د ويـنې فشـار ثابتيـږي او Radial نبض د جس وړ کيږي په چټکۍ سره بايد تطبيق شي.

که يو کاهل ته په ترضيضي او جراحي پېښو کې له يو ليتر نه اضافه مقدار ته اړه وي، وينه دې تطبيق شي.

که Haemacel نه وي، Ringer-lactate د ضايع شوی ويني د تخمينی مقدار درې چنده دې تطبيق شي.

---

**Ringer-lactate***

رينګر لکتګيتګ

(Hartmann's solution)

*500 ml او 1000 ml*

بوتلونه او کڅوړې

**استطباب:** • د مايعاتو په وخيمې ضياع کـې د Rehydration لپاره • Fluid replacement په هغه صورت کې چې نـور مايعـات نه وي.

100 ml/kg دې د ۴ ساعتونو په اوږدو کې تطبيق شـي. پـه پيـل

کې تر څو چې راديل نبض (Radial pulse) جس کيږي په چټکۍ دې ورکړل شي، وروسته ورو-ورو. چې څرنګه ناروغ وکولای شي مايعات وڅښي هغه ته د دې پر ځای د خولې له لارې ORS ورکړئ.
هغه ناروغان چې خفيف او متوسط Dehydration ولري بايد له خولې له لارې يې اوبه او الکتروليت ارجاع شي.

---

**Sodium chloride* 0.9 %**
(Physiological salt solution= Isotonic solution)
*500 and 1000 ml*
بوتلونه او کڅوړې

**استطباب:** • د نورو زرقي درملو (Infusion) د تطبيق لپاره د يو وسط يا وسيلې په څير استعماليږي. په هغه صورت کې چې نور مايعات نه وي، د مايعاتو د ضياع د رفع کولو لپاره هم استعماليدلای شي.

# ۳- د نوو زیږیدلو ماشومانو لپاره د اساسي درملو لست

نوی زیږیدلی له هغه ماشوم څخه عبارت دی، چې عمر یې له زیږیدلو څخه تر یـوې میاشـتې پـورې وي. د نوي زیږیدلي د درملو ډوز له نورو لویو ماشومان څخه توپیر لري. کله چې تاسې یو ماشـوم تـه چې عمر یې له یوې میاشتې ټیټ وي درمل تجویزوئ، له لاندې لست نه کار واخلئ.

معیاري کتابونه د زیږون معمول وزن ۳-۵،۳ کیلو ګرام پورې ذکر کوي، د یوې میاشـتې پـه پـای کـې ماشوم د ۵،۳-۴ کیلو ګرامو په حدودو کې وزن درلودلای شي، په داسې حـال کـې چـې د افغانسـتان ډیر ماشومان په لږ وزن زیږیږي (له ۵،۲ کیلو ګرامو هم لږ)، که تاسې نوی زیږیدلی نه شـئ وزن کـولای او په نظر کې مو ډیر کوچنی ښکاري، د هغه وزن ۵،۲ کیلو ګرام او یا لږ محاسبه کړئ.
په لاندیني لست کې د ډوزونو ورکړل شوي مثالونه د هغه ماشوم لپاره چې ۳ کیلو ګرامـه وزن ولـري، سنجول شوي دي، چې دا ډوزونه په ډیرو حالاتو کې مناسب ګڼل کیږي.

د ډیرو معلوماتو لپاره لکه اړخیزې اغیزې او له نورو درملو سره یو ځایي اغیـزو لپـاره (د ماشـومانو او لویانو لپاره اساسي درملو لست) ته مراجعه وکړئ. (۱۰ مخ)

---

**Acetylsalicylic acid***
(Aspirin)

☜ هیڅکله دې نوي زیږیدلي ته نه تجویزیږي!

---

**Amoxicillin***
*Tablets 250 mg*
*Syrup 125 mg /5 ml*

استطباب: • د وریدي/عضلي امپیسیلینو د خولې د لارې ادامه.

Oral

نوی زیږیدلی (60-90 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو)
له زیږیدلو څخه تر ۴ اوونیو پورې 62.5-125 mg د ورځې درې ځلې.

---

**Ampicillin***
*Tablets 250 mg*
*Vials 500 mg and 1 g*

اسـتطباب: • د نـوي زیږیـدلي وخـیم انتانـات ( Pneumonia، Septicaemia، Meningitis، د بولي لارو انتانات).
☜ همیشه دې په وخیمو انتاناتو کې له Gentamicin سره یـو ځای شي.
☜ له جـوړ شـوي محلـول څخـه دې تـر ۱۲ سـاعتو پـورې لـه جوړیدو وروسته استفاده وشي.

IV/IM

نـوی زیږیـدلی (50-200 mg/kg/day پـه دوه یـا درې کسـري ډوزونو)
له اوو ورځو کوچنی 200 mg د ورځې دوه ځله
د ۲-۴ اوونیو 200 mg د ورځې درې ځلې

Oral

د خولې د لارې استعمال لپاره ښه ده چې د Ampicillin په ځای Amoxicillin د ښه جذب له کبله استعمال شي.
نوی زیږیدلی (50-100 mg/kg/day په درې کسري ډوزونو)
125 mg د ورځې درې ځله.

| | |
|---|---|
| **Anti-tetanus immunoglobulin*** (انساني)<br>IM او يا<br>**Anti-Tetanus Serum (ATS) (equine= horse serum)**<br>انساني Immunoglobulin يوازې 500 IU ويلونه پيدا کيږي.<br>1 ml امپولونه د 1500 IU ATS درلودنکي دي. | **استطباب:** • وروسته له چټل (منتن) لنګون څخه، له تيټانوس څخه د نوي زيږيدلي ماشوم د مخنيوي لپاره • د نوي زيږيدلي د تيټانوس درملنه.<br>**د نوي زيږيدلي د تيټانوس مخنيوى:**<br>انساني سيروم 250-500 IU يو واحد ډوز.<br>ATS 750 Units يو واحد ډوز.<br>**د نوي زيږيدلي د تيټانوس درملنه:**<br>انساني سيروم 500 IU يو واحد ډوز<br>ATS 1500 Units د ورځې يو ځل د درې ورځو لپاره<br>ځيني 10,000 واحده د واحد ډوز په څير پيشنهادوي. |
| **Benzylpenicillin***<br>(Penicillin G, Crystalline penicillin)<br>*Vials 1 and 5 M IU (1 M IU=600 mg)*<br><br>IV/IM | **استطباب:** • حاد وخيم انتانات چې له Penicillin سره حساس وي،په شمول د •Pneumonia •Meningitis• وخيمه Septicaemia • تيټانوس<br>• د Gonorrhoea له کبله د سترګې وخيم انتانات (Ophtalmia neonatorum).<br><br>☜ په سيستميکو وخيمو انتاناتو کې دې هميشه ورسره Gentamicin يو ځاى شي.<br>☜ په Ophtalmia neonatorum کې دې د درې ورځو لپاره ورکړل شي او په عين وخت کې دې د Gentamicin د سترګو څاڅکي هم تطبيق شي.<br>☜ محلول له جوړيدو وروسته تر ۲۴ ساعتو پورې د استعمال وړ وي او Infusion بايد هميشه تازه مخکې له استعمال څخه جوړ شي.<br>**نوى زيږيدلى**<br>**له اوو ورځو کوچنى:**<br>50.000-100.000 IU/kg/day) چې مساوي کيږي له 30-60 mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو)<br>150.000-200.000 IU (90-120 mg) هر ۱۲ ساعته وروسته<br>**د ۲-۴ اوونيو په منځ کې:**<br>100.000-200.000 IU/kg/day) چې مساوي کيږي له 60-120 mg/kg/day په ۴ کسري ډوزونو)<br>200.000 IU (120 mg) په هرو ٦ ساعتونو کې |

| | |
|---|---|
| **Chloramphenicol*** | ☜ هیڅکله دې نوي زیږدلي ته نه استعمالیږي! |
| **Cloxacillin***<br>*Capsules 250 mg*<br>Oral | استطباب: • هغه انتانات چې د Staphylococcus په وسیله رامنځ ته شوي وي لکه: جلدي انتانات، Mastitis.<br>**نوی زیږیدلی**<br>له اوو ورځو کوچني (50 mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو)<br>125 mg د ورځې دوه ځله<br>د۲-۴ اوونیو (75 mg/kg/day په ۳ کسري ډوزونو)<br>125 mg د ورځې ۳ ځلې. |
| **Co-trimoxazole*** | ☜ هیځله دې نوو زیږیدلو ماشومانو ته نه استعمالیږي ! |
| **Diazepam***<br>*Tablets 5 and 10 mg*<br>*Ampoules of 2 ml*<br>*چې*<br>*(=5 mg/ml)10 mg*<br>*لري.*<br>IV<br><br>IM/Oral | استطباب: • چاړان یا اختلاجات • د نوي زیږیدلي ټیټانوس (د Sedation او سپزم لپاره).<br>یادښت: Phenobarbital د نوو زیږیدلو د چاړان یا اختلاج لپاره لومړي غوره درمل دي.<br>**د چاړان یا اختلاج د تم کوولو لپاره**<br>د ریکتل (Rectal) تطبیق آغیزه یې د IV تطبیق په اندازه چټکه ده. د یو بې ستنې سرنج په وسیله دې په ریکتم کې تطبیق شي.<br>2 mg د ریکتم له لارې او یا 1 mg د ورید له لارې، نري دي شي او ډیر ورو په ۴ دقیقو کې دې تطبیق شي.<br>**د نوي زیږیدلي ټیټانوس**<br>نوی زیږیدلی دی د 5 mg عضلي زرق په وسیله ارام کړای شي، او وروسته دې که شوني وي 5 mg د خولې له لارې هر ٦ ساعته وروسته ادامه ورکړل شي. له هغې پرته 2.5 mg هر ٦ ساعته وروسته د عضلي لارې تطبیق شي که سپزم را منځ ته شي، اضافي ډوز دې تطبیق شي. |
| **Digoxin***<br>*Tablets 0.0625 mg*<br>*(=62.5 microgram)*<br>Oral | استطباب: • د زړه احتقاني عدم کفایه.<br><br>**نارمل Digitalisation**<br>(0.01mg/kg/day په دوه کسري ډوزونو چې مساوي کیږي له 10 microgram/kg/day)<br>15.6 microgram د ورځې دوه ځلې<br>**چټک Digitalisation**<br>(0.04 mg/kg/day یوازې د یوې ورځې لپاره (چې مساوي دي له 40 microgram/kg/day) په څلورو کسري ډوزونو وروسته دې د"عادي یا نارمل Digitalisation" په څیر ادامه ورکړل شي.) |

| | |
|---|---|
| | 31.25 microgram د ورځې څلور ځله، یوازې د یوې ورځې لپاره. |
| **Erythromycin*** <br> *Tablets 250 mg* <br> *syrup 125 mg/ 5ml* | **استطباب:** • د Chlamydia له کبله د نوي زیږدلي Conjunctivitis • جلدي انتانات. <br> یادښت: په Chlamydia conjunctivitis کې دې د دریو اوونیو لپاره ورکړل شي. |
| Oral | **نوی زیږیدلی** (20-30 mg/kg/day په ۲-۳ کسري ډوزونو) <br> 62.5 mg د ورځې ۲-۳ ځله. |
| **Furosemide*** <br> (Frusemide) <br> *Tablets 20 mg* <br> *Ampoules of 2 ml* <br> *20 mg* چې *(=10mg/ml)* لري. | **استطباب:** • د زړه عدم کفایه • د سږو اذیما |
| Oral | **نوی زیږیدلی** (0.5-4 mg/kg/day په ۱-۴ کسري ډوزونو) <br> لږ ډوز دې پیل شي. <br> 2.5-5 mg د ورځې یو ځل |
| IV/ IM | **نوی زیږیدلی** (1mg/kg/day که اړه وي شپږ ساعته وروسته یې تکرار کړئ). <br> 3 mg د ورځې تر ۴ ځلو پورې. |
| **Gentamicin*** <br> *Ampoules of 2 ml* <br> *40 mg* چې *(=20mg/ml )* لري. | **استطباب:** • د نوي زیږدلي وخیم انتانات ( Septicaemia, نمونیا، Meningitis، د بولي لارو انتانات). <br> ☜ همیشه دې له Ampicillin او یا Benzyl penicillin سره یو ځای شي. <br> ☜ له نورو درملو سره دې په عین سرنج او یا Infusion کې نه ګډیږي. |
| IM/ IV | **نوی زیږیدلی** <br> **له ۷ ورځو کوچنی** (5 mg/kg د ورځې یو ځل) <br> 15 mg د ورځې یو ځل <br> **د ۲-۴ اوونۍ** (7.5 mg/kg د ورځې یو ځل) <br> 20 mg د ورځې یو ځل |
| **Glucose*** <br> (Dextrose) <br> *Ampoules of 10ml* <br> چې *50% glucose* لري. | **استطباب:** • Hypoglycaemia • هغه چاړان یا اختلاجات چې د Hypoglycaemia له کبله را منځ ته شوي وي. |
| Oral | که د نوي زیږیدلي شعوري حالت ښه وي او تیرولای یې شي |

| | |
|---|---|
| IV | د خولې له لارې د 5 ml په اندازه د ګلوکوز له 50% محلول شخه ورکړئ او د مور تی دې هم روي.<br>که نوی زیږیدلی یې تیرولای نه شي او یا چاړان یا اختلاجات موجود وي<br>د 50% ګلوکوز محلول 1 ml/kg د ګلوکوز په 10% محلول کې نری یا رقیق کړئ او د ورید د لارې دې په ۱۵ دقیقو کې ورکړل شي. که ضرورت وي تکرار دې شي.<br>**10% محلول څنګه جوړولای شئ؟**<br>د ګلوکوز څومره محلول ته چې اړه وي په هغې کې څلور چنده 0,9% سوډیم کلوراید یا مقطر اوبه ورډیرې کړئ.<br>د یو نوي زیږیدلي لپاره چې 3 kg وزن ولري 3 ml د ګلوکوز 50 % محلول راواخلئ، په هغې کې 12 ml ( چې د ګلوکوز د مقدار څلور چنده کيږي) Sodium chloride 0,9% ور ډير کړئ، چې مجموعاً 15 ml کیږي، هغه په ۱۵ دقیقو کې تطبیق کړئ. |
| **Isoniazid*** (INH)<br>*Tablets 100 mg*<br>Oral | استطباب: • د نري رنځ درملنه او مخنیوی.<br>☜ که له درملنې لپاره استعمالیږي، د نري رنځ له نورو درملو سره دې د نري رنځ د ستندرډ لارښود له مخې یو ځای شي. ۹٦ مخ ته دې مراجعه وشي.<br>**د نري رنځ درملنه**<br>نوی زیږیدلی(5 mg/kg د ورځې یو ځل )<br>15 mg د ورځې یو ځل ( چې تقریباً د 100 mg تابلیټ څلورمه برخه کیږي.)<br>مخنیوی د هغه نوي زیږیدلي لپاره چې د زیږیدلو په وخت کې یې مور فعال توبرکلوز ولري. (د خراخکو یا بلغمو مثبت تست)<br>5 mg/kg د ورځې یو ځل د ٦ میاشتو لپاره.<br>شپږ میاشتې وروسته د BCG په وسیله Immunisation. د مور تي ته دې دوام ورکړل شي. |
| **Metamizol**<br>(Analgin, Dipyrone, Noramidopyrine, Novalgin) | ☜ هیڅکله دې نوي زیږیدلي ته نه استعمالیږي!<br>د خطرناکو اړخیزو اغیزو له کبله (د مثال له ډول Aplastic anaemia ) |
| **Metronidazole***<br>*Tablets 200,250 mg*<br>*Syrup* مختلف مستحضرات<br>Oral | استطباب: • Anaerobic انتانات<br>(20-30 mg /kg/day په درې کسري ډوزونو)<br>30-50 mg د ورځې درې ځلې. |

| | |
|---|---|
| **Nystatin*** *Tablets 100.000 and 500.000 IU* | **استطباب:** • Candidiasis (فمی، معدی معایي). |
| Oral | یو ټابلیټ میده کړئ او د نوي زیږیدلي په خوله کې یې واچوئ. 100,000-500,000 IU د ورځې څلور ځله له خوړو ورسته. درملنې ته تر ۱۰ پورې دوام ورکړئ. |
| **Paracetamol*** (Acetaminophen) *Tablets 100 mg* *Syrup 120 mg/5 ml* | **استطباب:** • تبه<br>**یادښت:** نادراً نوو زیږیدلو ته استعمالیږي. |
| Oral | نوی زیږیدلی (10 mg /kg واحد دوز)<br>25-30 mg یو دوز<br>که ضرورت وي، هر ٦-٨ ساعته وروسته یې تکرار کړئ). |
| **Phenobarbital*** (Phenobarbitone) *Tablets 15 and 30 mg* *Ampoules of 2ml 200mg* چې *(=100mg/ml)* لري. | **استطباب:** • چاړان یا اختلاجات • په ټیټانوس کې د Sedation لپاره.<br>☜ د نوي زیږیدلي د زیږي لپاره دې نه استعمالیږي. |
| IM/IV | **چاړان یا اختلاجات**<br>25mg یو واحد دوز وریدي (یا عضلي)<br>که اغېزه یې و نه کړه، ډیازیپم ورکړئ. Hypoglycaemia هم تداوي کړئ. د Phenobarbital دوز یو ساعت وروسته تکرار کړئ. |
| Oral | **د پرله پسې چاړان یا اختلاج په صورت کې:**<br>15 mg (چې مساوي کیږي له 5mg/kg سره) ۱۸ ساعته له لومړني وریدي یا عضلي دوز له ورکولو څخه وروسته، د خولې له لارې پیل کړئ.<br>**په ټیټانوس کې Sedation د لپاره:**<br>7.5-15 mg د ورځې څلور ځله |
| **Phytomenadione*** فایټو میناډوین (Vitamin K) *Ampoules of 0.5 ml* چې *1 mg* لري. | **استطباب:** • د نوي زیږیدلي د Haemorrhagic ناروغیو مخنیوی او درملنه. |
| IM | **مخنیوی**<br>په ټولو هغو نوو زیږیدلو کې چې د Haemorrhagic ناروغیو له |

| | |
|---|---|
| | خطر سره مخامخ وي، 1 mg د عضلي لارې يـو واحـد ډوز دې تطبيق شي.<br>**هغه نوي زيږيدلي چې له خطر سره مخامخ دي:**<br>▪ ټول هغه نوي زيږيدلي چې مخکـې لـه وختـه زيږيـدلي وي (د بلاربښت له ۳۷ مې اوونۍ څخه مخکې)<br>▪ ټول هغه نوي زيږيدلي چې د تنفس د پيل لپاره مرستې ته اړه ولري (د زيږيدلو د وختAsphyxia).<br>▪ ټول هغه نوي زيږيدلي چې د زيـږون د اوږدې پروسـې په ترڅ کې زيږيدلي وي يا په بل عبارت زيږون يې ډير وخـت نيولی وي (له ۱۲ ساعتو ډير).<br>▪ ټول هغه نوي زيږيدلي چې د Caesarean section اويا Forceps په وسيله زيږيدلي وي.<br>**درملنه:**<br>1mg وريدی او يا عضلي.<br>په هغه صـورت کـې چـې وينـه تويدنـه (خـونريزي) و نـه دريـږي، وروسـته لـه دوه سـاعتو دې تکـرار شــي او پــه ضــمن کــې دې د Septicaemia په خير تداوي شي . |
| **Retinol***<br>(Vitamin A)<br>*Capsules 100,000 and 200,000 Units*<br>Oral | **استطباب:** • د ويټامين A د کمښت درملنه او مخنيوی<br>☜ که تاسې 200,000 IU د نوي زيږيدلي لپاره اسـتعمالوئ، د هغې دوه څاڅکي تقريباً 50,000 IU کيږي.<br>**د ويټامين A د کمښت مخنيوی**<br>ټول هغه نوي زيږيدلي چې وخيمه ناروغي ولري 50.000 IU يـو واحد ډوز.<br>**د ويټامين A د کمښت درملنه**<br>50.000 IU يو ځل په لومړۍ او دويمه ورځ او وروسـته لـه يـوې اوونۍ.<br>وروسته له ۴ مياشتو يې يو واحد ډوز تکرار کړئ. |
| **Tetracycline**<br>*Eye ointment* | د (چ) برخې، د سترګو درملو ته دې مراجعه وشي.<br>(۷۱مخ) |
| **Vitamin A*** | Retinol* ته دې مراجعه وشي.<br>(٦١مخ) |
| **Vitamin K*** | Phytomenadione* دې مراجعه وشي.<br>(۷۹مخ). |

# ۴- په انتاناتو کې د درملو معقول تجويز

## الف - د Antibiotics معقول تجويز

په طبابت کې د ميکروب ضد درملو (Antibiotic) په تجويزولو کې نسبت نورو درملو ته ښه منطق او ډېر دقت ته ضرورت دی، ځکه د نورو درملو غلط تجويز به يوازې په فردي ډول ناروغ متأثر کړي، خو د Antibiotic غلط استعمال د مقاومو باکترياو د رامنځ ته کولو له کبله په ټوله نړۍ ناوړه اغيزه کولای شي.
همدا اوس په ډېرو هېوادونو کې د درملو سره مقاومې باکترياوې موجود دي چې د ناروغيو او د مړينو د پېښو ډېروالي يې ښه بېلګه ده.
د Antibiotic غلط او غير معقول استعمال په مجموعي ډول د دې کړکيچونو عامل ګڼلای شو.

### د ميکروب ضد درملو د معقول تجويز قاعدې:

۱. د ميکروب ضد درمل دې يوازې هغه وخت وکارول شي، چې ناروغي د باکتري په وسيله رامنځ ته شوې وي. د بېلګې په ډول د تنفسي پاسنيو لاروي د ډېرو انتاناتو عامل ويروسونه وي، چې Antibiotic ته اړه نه لري.
۲. د هرې ناروغۍ په پېښه کې بايد د هغې لومړي غوره درمل (First choice) ورکړل شي. په انتاني ځانګړو پېښو کې د هغوی مرضي عوامل ښه پېژندل شوي دي، د بېلګې په ډول د Pneumonia عامل د ۵ کالو څخه په لوړ سن کې Pneumococcus وي بناً د Antibiogram او Culture د امکان د نشتوالي په صورت کې هم موږ کولای شو د هغوی لومړي غوره يا First choice انتي بايوټيک د ناروغۍ د له منځه وړلو لپاره ورکولای شو.
۳. دوه انتي بايوټيک بايد يوازې هغه وخت يو ځای استعمال شي چې د استعمال لپاره يې معقول دليل موجود وي. ډېر شمير ناروغۍ يوازې په يو انتي بايوټيک تداوي کېدای شي. د دويم انتي بايوټيک يو ځای کول د مقاومت، اړخيزو اغېزو او د درملو تر منځ خپل مينځي اغېزې خطر ډېروي، خو د درملنې په بهترۍ کې کومه اغيزه نه کوي. د درملو بيه بې ضرورته لوړيږي او ممکن له همدې کبله ناروغ د انتي بايوټيکو کورس بشپړ نه کړای شي.

د مثال په ډول ويلای شو، چې د Amoxicillin او Co-trimoxazole *يو ځای ورکول* غير معقول دي.
د انتي بايوټيکونو د يوځای استعمال دوه معقول دليلونه عبارت دي له:

- هرکله چې يو Antibiotic و نه کړای شي د ناروغۍ ټول احتمالي عوامل په يوازې ځان له منځه وړلای نه شي. مثلاً Abdominal sepsis.
- هرکله چې د يو ډول Antibiotic د استعمال له کبله د ميکروبونو د مقاومت د خطر احتمال موجود وي. مثلاً د نري رنځ يا Tuberculosis په درملنه کې.

۴. **Antibiotics** بايد معمولاً لږ تر لږه تر پنځو ورځو پورې واخستل شي، چې له يو اړخه د درملنې د ناکامۍ او له بل اړخه د مقاومو ميکروبونو د نمو مخه ونيسي
۵. نوي **Antibiotic** لکه Ciprofloxacin بايد د اختلاطي پېښو لپاره وساتل شي چې احتمالاً له نورو Antibiotics سره مقاوم دي. که چېرې نوي Antibiotic د لومړي غوره (First choice) درمل په څير استعماليږي نو ډېر ژر به د مقاومو باکترياو د نمو له کبله خپله اغېزه له لاسه ورکړي.

## ب - د معمولو انتاناتو لپاره لومړی غوره انتي بايوټيک
(“First choice” antibiotics)

لاندينی لست د اکثر معمولو انتاناتو لپاره د لومړي غوره Antibiotic څرګندونکی دی. انتانات د وجود د ماوفه جهاز مطابق ذکر شوي دي، مثلاً د تنفسي سيستم انتانات، د معدي معايي سيستم انتانات. هغه درمل چې په پيل کې د وريد يا عضلې له لارې پيل شوې وه، که د ناروغ حالت ايجاب وکړي، بايد په فمي درملو بدل شي.

په هغه ځای کې چې Amoxicillin ذکر شوي، پر ځای يې Ampicillin استعمالولای شئ. که Doxycycline ته لاس غزونه نه کيږي يانې نه وي موجود نو پر ځای يې Tetracycline استعمالولای شئ.

### ■ د غوږ، پزې او ستوني انتانات

#### د غوږ انتانات

**Acute otitis media** (د منځني غوږ حاد التهاب)

- Amoxicilline يا Co-trimoxazole فمي د ۵ ورځو لپاره.

**Chronic otitis media** يا د منځني غوږ ځنډنی التهاب:

(کله چې له غوږ څخه د نو د رابهير کيدلو له دوه اوونيو ډير وخت شوی وي، په دې نوم ياديږي)

- ناروغ ته لارښوونه وکړئ، چې خپل غوږ د پاک ټوکر په وسيله وچ وساتي، او د اوو ورځو لپاره دې د Gentamicin د غوږ څاڅکي استعمال کړي.
- يوازې دې د دويمګړي (تالي) انتان د مداخلې په صورت کې د Acute otitis media په څير د خولې د لارې په Antibiotic انتي بايوتيکو تداوي شي. (د دويمګړي انتان کلينيکي نښې عبارت دي له: تبې او د غوږ د درد له شدت څخه).

**Mastoiditis**

که ښځه يا ابسې موجود وي، تخليه دې شي، Ampicillin اويا Procaine benzyl penicillin دې د ۷-۱۴ ورځو پورې ورکړل شي.

**Otitis externa**

د غوږ نلی يا کانال دې پاک شي. د غوږ څاڅکي انتی بيوتيک (د مثال په ډول Gentamicin د غوږ څاڅکي) چې معمولاً له موضعي Corticosteroid سره يو ځای وي، تجويز شي. (جنتامايسين د سترګو څاڅکي هم د غوږ لپاره استعماليدلای شي).

که ډير وخيم وي Co-trimoxazole (اويا Erythromycin يا Cloxacillin) فمی دې د پنځو ورځو لپاره ورسره يو ځای شي.

#### د ستوني انتان (Throat Infection)

**Candidiasis (Oral thrush)**

- Nystatin او يا Gentian violet لږ تر لږه د لسو ورځو لپاره.

**Pharyngitis** (عادي)

ويروسي انتان دی Antibiotic استطباب نه لري.

**(Streptococcal) Tonsillitis**

- Penicillin V فمی د لسو ورځــو لپــاره (او يــا *Benzathine benzylpenicillin يــو واحد ډوز د عضلي لارې يا IM).
- د Penicillin سره د حساسيت په صورت کې، Erythromycin د ۱۰ ورځو لپاره.

☜ Amoxicillin بايد استعمال نه شي، ځکــه د Glandular fever د موجوديــت پــه صورت کې د جلدي عکس العمل سبب کيږي.

## د غاښونو انتانات

**Dental abscess**

- Penicillin V (اويا Amoxicillin) فمي د پنځو ورځو لپاره.
- که اغيزه و نه کړي، Metronidazole ورسره يو ځای کړئ.

غاښ بايد ۴۸ ساعته د انتي بايوتيکو له پيل څخه وروسته وکښل شي.

## نور انتانات (Others):

### والګې يا ريزش (Common cold)

ويروسي انتان دی، انتي بايوتيک دې نه استعماليږي.

### رقبي Lymphadenitis

- غالباً ويروسی وي انتي بايوتيک دې نه استعماليږي. يوازې هغه وخت چې سوررنګی او ګــرم وي Penicillin V (اويا Procaine Benzyl penicillin) د ۵ ورځو لپاره دې ورکړل شي.

د عقداتو نری رنځ دې هم په پام کې وي، خصوصاً هغه وخت چې افرازات ولري.

**Sinusitis**

- Amoxicillin (اويا Co-trimoxazole يا Doxycycline) د ۱۰-۱۴ ورځو لپاره.

## ■ د تنفسي لارو انتانات

### نمونيا (Pneumonia)

انتي بايوتيک د ناروغ د عمر او د ناروغۍ د وخامت له مخې غوره کيږي. په ياد مو وي په هغــو ماشــومانو کې چې عمر يې له پنځو کالو لږ وي، د تنفس شمير او د تنفس کولو په وخت کې د پوښتيو تر مــنځ عضــلو کشش يا د ګوګل ننوتل، Pneumonia ښکارندوي کوي، نسبت د صدر اصغا ته.

*په ماشومانو کې د چټک تنفس تعريف:*

| *عمر* | *د تنفس شمير په يوه دقيقه کې* |
|---|---|
| له دوه مياشتو کوچنی | ۶۰ او يا له هغې څخه ډير |
| ۲- ۱۲ مياشتو | ۵۰ او يا له هغې څخه ډير |
| ۱-۵ کالو | ۴۰ او يا له هغې څخه ډير |

### نمونيا چې وخيمه نه وي (Non-severe pneumonia)

له پنځو کالو کوچنيو ماشومانو کې چې ټوخی او تنفسي مشکل ولري، کلينيکي ميندنې:

- چټک تنفس
- د ګوګل ننوتل يا Chest indrawing نه دی موجود.

*هغه ماشومان چې عمر یې له دوه میاشتو لږ وي:*

- همیشه دې د وخیمې نمونیا په څیر تداوي شي.
- Ampicillin او Gentamicin وریدي یا عضلي د لسو ورځو لپاره (یاBenzylpenicillin او Gentamicin).

*له دوه میاشتو لوی ماشومان او لویان:*

Co-trimoxazole د پنځو ورځو لپاره (یا Amoxicillin اویا Procaine benzylpenicillin).

## وخیمه نمونیا (Severe pneumonia)

له پنځو کالو کوچنیو ماشومانو کې چې ټوخی او تنفسي مشکل ولري، کلینیکي میندنې:

- د ګوګل ننوتل یا Chest indrawing له چټک تنفس سره اویا پرته له هغې.
- د سیانوزس نه موجودیت.
- ماشوم د څښلو توان لري.

*هغه ماشومان چې عمر یې له دوه میاشتو لږ وي:*

- Ampicillin او Gentamicin وریدي یا عضلي د لسو ورځو لپاره (یا Benzylpenicillin او Gentamicin).

*له دوه میاشتو لوی ماشومان او لویان:*

- Ampicillin وریدي یا عضلي د ۳ ورځو لپاره (اویا Benzylpenicillin). وروسته Amoxicillin فمی د ۵ ورځو لپاره.
- که تر ۴۸ ساعتو پورې د ناروغ وضعیت ښه نه شو، Chloramphenicol تجویز کړئ.
- که Staphylococcal pneumonia ته فکر کیږي، Cloxacillin او Gentamicin د درې اوونیو لپاره ورکړئ.

## ډیره وخیمه نمونیا (Very severe pneumonia)

له پنځو کالو کوچنیو ماشومانو کې چې ټوخی او تنفسي مشکل ولري، کلینیکي میندنې:

- مرکزي سیانوز.
- څښلای نه شي.
- ممکن د ګوګل ننوتل یا Chest indowing موجود وي.

*هغه ماشومان چې عمر یې له دوه میاشتو لږ وي:*

- Ampicillin او Gentamicin وریدي یا عضلي د لسو ورځو لپاره (یا Benzylpenicillin او Gentamicin).

*له دوه میاشتو لوی ماشومان او لویان:*

- Chloramphenicol او Gentamicin (یا Ampicillin اوGentamicin اویا Benzylpenicillin او Gentamicin) د لسو ورځو لپاره.
- که تر ۴۸ ساعتو پورې د ناروغ حالت ښه نه شو، Staphylococcal نمونیا فکر کیږي، Cloxacillin او Gentamicin دې د ۳ اوونیو لپاره تجویز شي.

که د ښې درملنې سره سره ناروغ په یوه اوونۍ کې ښه نه شو او یا یې وضعه لاپسې خرابه شوه، د نري رنځ اړونده کتنې یا معاینات دې وشي.

**Aspiration pneumonia**

- Gentamicin او Ampicillin د Corticosteroid سره د ۱۰ ورځو لپاره.

ځينې Metronidazole ورسره هم يو ځای کوي.

**Mycoplasma pneumonia**

- Erythromycin (يا Doxycycline) د ۱۰ ورځو لپاره.

**Staphylococcal Pneumonia**

- Gentamicin او Cloxacillin (اويا Chloramphenicol او Cloxacillin) د درې اوونيو لپاره.

## نورې تنفسي ستونزې:

### Asthma يا زرۍ

☜ استما يا زرۍ انتاني ناروغي نه ده! دا د مختلفو تنبهاتو (لکه Allergen يـا د پاسـنيو تنفسـي لارو ويروسي انتاناتو) په مقابل کـې د قصـباتو يـو Hypersensitivity عکـس العمـل دی. نظـر د ناروغۍ شدت او وخامت ته په Bronchodilator (Aminophylline اويا Salbutamol) او ممکن Corticosteroids (لکه Prednisolone) تداوي شي.

**Bronchiolitis**

له يو کال څخه کوچنيو ماشومانو ويروسي پېښه ده، Antibiotic د ناروغۍ په طبعي دوره کې بدلون نه شي راوستلای، خو سره د هغې هم Pneumonia په څير يوه دوره انتي بايوتيک ورکول کيـدای شـي، خرنګه چې مشکله ده چې Bronchopneumonia په کلينيکي معايناتو رد کړو.

**Bronchitis**

معمولاً ويروسي وي او انتي بايوتيک ته اړه نه لري.

باکتريايي Bronchitis په هغوی کې ډير عام دی، چې د کوم بل تنفسي تکليف سـابقه ولـري. هغـوی ته Co-trimoxazole (او يا Amoxicillin) د ۵-۱۰ پورې ورکړئ.

**(Infectious Croup) Croup**

ويروسي پېښه ده، Antibiotic مه استعمالوئ.

**Acute Epiglottitis**

- Chloramphenicol وريدي د ۱۰ تر ۱۴ ورځو پورې.

**توره ټوخلې (Whooping Cough)**

- Erythromycin (اويا Amoxicillin) د ۱۰ ورځو لپاره.

درمل يوازې هغه وخت اغيزه کوي، چې که د ناروغۍ په لومړيو دوه اوونيو کې پيل شي.

## ■ د معدي معايي جهاز انتانات (Gastro-intestinal infections)

**حاد اوبلن نسناستی (Acute watery diarrhoea):** (نسناستی چې وينه په کې نه وي له ۱۰ ورځو يې لږ وخت شوی وي له تبې سره او يا پرته له تبې)

- هميشه ORS تجويز کړئ.

☜ هيڅکله په روتين ډول Antibiotic مه تجويزوئ. دا ناروغي پخپله ښه کيږي، ممکن انتي بايوتيک يې لاپسې خرابه کړي.

☜ هيڅکله د نسناستي ضد درمل ماشومانو ته مه ورکوئ.

**کولرا يا وبا (Cholera)**

- مهمترينه مساله په ډيرې چټکۍ او کافي اندازه (Vigorous rehydration) د ORS (اويا Ringer محلول د وريد له لارې) په وسيله د مايعاتو او مالګو اعاده ده.
- د وخيمو پېښو لپاره Doxycycline (يا Erythromycin اويا Co-trimoxazole) د دوه ورځو لپاره توصيه کړئ.

**حاد وينه لرونکی نسناستی (پيچش، نسخوړی) يا Dysentery**

**ميکروبي پيچش يا نسخوړی (Bacillary dysentery)**

- هميشه ORS تجويز کړئ.
- که متوسط يا وخيم وي: Co-trimoxazole (اويا Ampicillin) د پنځو ورځو لپاره.
- که دوه ورځې وروسته ښه نه شو، Nalidixic acid د پنځو ورځو لپاره.

**آميبي پيچش يا نسخوړی (Amoebic dysentery)**

- Metronidazole د ۵-۱۰ ورځو پورې (اويا Tinidazole د درې ورځو لپاره).

**Clostridium difficile (Necrotizing entero-colitis)** که ناروغانو ته وسيع الساحه انتي بايوتيک مخکې ورکړل شوي وي، وينه لرونکې نسناستی کيدای شي د Clostridium Difficile له کبله وي.

- Metronidazole د لسو ورځو لپاره.

**ځنډنی او پرله پسې يا دوامدار نسناستی (له دوه اوونيو ډير دوام)**

سببي عامل تداوي کړئ. د هغې معمول سبب خرابه تغذي او د معدي معايي سيستم نه بهر ناپېژندل شوي انتانات دي.

- Metronidazole ورکولای شئ، معمولاً په روتين ډول انتي بايوتيک نه استعماليږي.

په ياد مو وي چې د ځنډني او پرله پسې نسناستي غير ميکروبي پېښې شته دی لکه د سوٌتغذي لـه کبلـه سوٌجذب يا د انتي بايوتيکو د استعمال له خاطره پا تالي ډول د معايي فلورا متأثر کيدل.

هميشه ماشومانو ته Vitamin A ورکړئ او د ښو خوړو په ورکولو تأکيد وکړئ.

**:Giardiasis**

- Metronidazole د ۳-۱۰ ورځو لپاره (اويا Tinidazole يو واحد ډوز).

## چينجي (Helminths):

***د چينجو يوځايي درملنه***

- Mebendazole (اويا Pyrantel) واحد ډوز.

**اسکاريس (Ascaris)**

- Mebendazole (يا Pyrantel ، Albendazole اويا Piperazine).

**Enterobius** (Pinworm, Threadworm, Oxyuriasis)

- Mebendazole (يا Pyrantel ، Albendazole اويا Piperazine).

**Hookworm**

- Mebendazole(يا Pyrantel اويا Albendazole).

**Strongyloides**

- Albendazole ( اويا دويم غوره درمل Mebendazole).

**Tapeworms (فيتوي چينجي يا Hymenolepsis nana او نور)**

- Niclosamide (اويا دويم غوره درمل Mebendazole)

**(Whipworm) Trichuriasis**

- Mebendazole (يا Pyrantel اويا Albendazole).

## د ينې يا کبد او تريخې (د صفرا کڅوړې) ناروغې

**د ينې اميبي ښنځې يا ابسې Amoebic liver abscess**

- Metronidazole د لسو ورځو لپاره د هغې پسې Diloxanide د ۱۰ ورځو لپاره.

**حاد Cholecystitis:**

- Ampicillin او Gentamicin د ۱۰ ورځو لپاره

**Hepatitis**

مختلف عوامل د هغې سبب کيدلای شي، مثلاً ويروسونو او د درملو په مقابل کې عکس العمل.

☞ په روټين ډول Antibiotic مه توصيه کوئ.

**Hydatid ناروغی (د ينې يا کبدي او خپور يا منتشر يا Disseminated شکل يې)**

- Albendazole د درې مياشتو لپاره (له عملياتو څخه دې دوه اوونۍ مخکې پيل شي).

**Peritonitis**

Bacterial peritonitis (د مثال په ډول د تثقبې Appendicitis له کبله ، د بطن او حوصلې له جراحۍ وروسته Sepsis)

- Gentamicin او Ampicillin او Metronidazole د لسو ورځو لپاره.

اويا Gentamicin او Benzylpenicillin او Metronidazole د ۱۰ ورځو لپاره.

او يا Chloramphenicol او Metronidazole د ۱۰ ورځو لپاره.

**د Nephrotic Syndrome په موجوديت کې د Peritonitis د مخنيوي لپاره**

- Penicillin V تر هغې پورې چې حبن موجود وي.

## ■ بولي لارې يا Urinary Tract

**د لاندينيو بولي لارو انتانات (Cystitis)**

- Co-trimoxazole د ۵ ورځو لپاره.
- که تر ۴۸ ساعتو پورې ځواب و نه وايي Amoxicillin اويا زيرمه يا ريزرفي درمل Nalidixic acid دې ورکړل شي.

**په بلاربښت کې (د بولي لارو د لاندينيو برخو انتانات):**

- Amoxicillin د ۷ ورځو لپاره
- که ځواب و نه وايي: Cephalosporine دې ورکړل شي، لکه Cephalexin (اويا که د بلاربښت وروستۍ مياشت نه وي: Co-trimoxazole)

**د پاسنيو بولي لارو انتان (Pyelonephritis)**

- Co-trimoxazole فمی د لسو ورځو لپاره.
- که وخيم وي: Gentamicin د ۷-۱۰ ورځو پورې ځينې وخت Ampicillin هم ورسره يو ځای کيږي.

**:Prostatitis**

- Co-trimoxazole د ۴ اوونيو لپاره.
- که وخيم وي: Ampicillin او Gentamicin تر ښه کيدو پورې، وروسته Co-trimoxazole د خولې له لارې مجموعاً د ۴ اوونيو لپاره.

## ■ تناسلي سيستم

**هغه ناروغۍ چې د جنسي نږديوالي له لارې انتقال کوي**

Sexually Transmitted Diseases (STDs) يا جنسي مقاربتي ناروغۍ د Genital ulcer, Urethral discharge، Cervicitis يا Vaginal discharge په شکلونو تظاهر کولای شي. دا مهمه ده چې مقابل لوری هم په عين وخت کې د ناروغ په څير د ناروغۍ د بيا اخته کيدو د مخنيوي لپاره، د اعراضو د نه موجوديت په صورت کې هم تداوي شي، له هغې پرته انتان بيا منځ ته راتلای شي.

مشخص Microbiological معاينات ندرتاً موجود وي نو له همدې کبله بايد درملنه داسې اجرأ شي، چې د ناروغۍ ټول احتمالي عوامل احتوأ کړای شي

**Genital ulcer (تناسلي قرحات)**

درملنه بايد لاندې ناروغۍ احتوأ کړي:

**۱- Syphilis**

- Benzathine benzylpenicillin عضلي، واحد ډوز چې دوه اوونۍ وروسته دې تکرار شي.
- د Penicillin سره د حساسيت په صورت کې , Erythromycin دې د دوه اوونيو لپاره ورکړل شي (اويا Doxycycline).

**۲- Chancroid**

- Erythromycin د ۷ ورځو لپاره.

(يا Doxycycline او يا Co-trimoxazole دوه ټابليټه 960 mg د ورځې دوه ځلې د ۷ ورځو لپاره).

**Urethral discharge يا احليلي افرازات (ښځه يا سړی)**

په درملنه کې بايد لاندې ناروغۍ شاملې وي:

**۱- :Gonorrhoea**

- Benzathine benzylpenicillin عضلی یو واحد ډوز
(او یا Amoxicillin فمی 3g واحد ډوز له Probenecid سره په یو وخت).
- د مقاومو پېښو د درملنې لپاره: 500 mg Ciprofloxacin د خولې له لارې یو واحد ډوز.

۲- **Chlamydia:**

- Doxycycline او یا Erythromycin د ۱۰ ورځو لپاره.

## **Cervicitis (د زیلانځ یا رحم د عنق التهاب):**

په درملنه کې باید دواړه Gonorrhoea او Chlamydia شامل وي.

- د Urethral discharge په څیر انتي بایوتیک ورکړئ.

## Vaginal discharge (مهبلي افرازات)

یوازې د Trichomoniasis له کبله مهبلي افرازات د جنسي نږدیوالي ناروغي ده.
Vaginal thrush (Candidiasis) او Bacterial vaginosis د جنسي نږدیوالي ناروغۍ نه دي.
په دې دوه وروستیو پېښو کې د مقابل لوري تداوي کول ضرور نه ګڼل کیږي.
په هغه صورت کې چې د Vaginal discharge عامل نه وي څرګند، درملنه باید لاندې ناروغۍ احتواً کړای شي:

۱- Vaginal thrush =**Candidiasis**:

Nystatin (او یا Gentian violet) د مهبل له لارې د ۱۴ ورځو لپاره.

۲- **Trichomoniasis:**

Metronidazole 2 g یو واحد ډوز.

۳- **Bacterial vaginosis:**

Metronidazole د Trichomoniasis په څیر.

## **Pelvic Inflammatory Disease (PID) یا حوصلي التهاب**

- Doxycycline او Metronidazole (او یا Erythromycin او Metronidazole ) د ۱۰ ورځو لپاره.

### **له لنګون وروسته انتان (Puerperal sepsis)**

- Ampicillin او Metronidazole د ۱۰ ورځو لپاره.

## ■ قلبي وعايي سیستم (Cardiovascular system)

### **Endocarditis:**

د حاد Endocarditis درملنه

- Benzylpenicillin وریدي او Gentamicin وریدي د دوه اوونیو لپاره، وروسته Amoxicillin فمی د دوه اوونیو لپاره.

د Endocarditis مخنیوی:

هغه ناروغان چې د زړه Murmurs لري، د غاښو ایستلو، د جراحي عملیاتو او لنګون په وخت کې وقایې ته اړه لري:

- Amoxicillin 3g دې یو ساعت مخکې له عملیې څخه او 500 mg شپږ ساعته وروسته له هغې ورکړل شي.
- په عمومي انستیزي کې: Ampicillin، 1 g وریدي یا عضلي، یوازې یو ساعت د انستیزي له پیل نه مخکې او 500 mg وریدي یا عضلي شپږ ساعته له هغې وروسته.
- په ماشومانو کې د لویانو نیم ډوز.

د **Rheumatic fever** درملنه

- Penicillin V د لسو ورځو لپاره.
- د پنسلین سره د حساسیت په صورت کې Erythromycin د ۱۰ ورځو لپاره.

د ناروغۍ د بېرته راګرځیدو یا Recurrence د مخنیوي لپاره:

- Benzathine benzylpenicillin د میاشتې یو ځل له وروستنۍ حملې څخه وروسته تر ۵ کالو پورې اویا تر څو چې ماشوم ۱۸ کلنۍ ته ورسیږي.
- د پنسلین سره د حساسیت په صورت کې: Erythromycin دې ورکړل شي.

## ■ د عصبي جهاز انتانات (Nervous system infections)

### Bacterial meningitis

**نوي زیږیدلي (له یوې میاشتې کم عمره)**

- Ampicillin او Gentamicin د ۱۴ ورځو لپاره، وریدي (یا عضلي).

**له دوه میاشتو لوی ماشومان**

- Chloramphenicol او Ampicillin وریدي (یا عضلي) د ۱۴ ورځو لپاره.

**لویان**

- Benzylpenicillin وریدي (او یا Chloramphenicol) د ۱۴ ورځو لپاره.

### Poliomyelitis

ویروسي ناروغي ده، انتي بایوتیک مه تجویزوئ.

☜ هیڅکله هغه ماشوم ته چې Poliomyelitis فکر کوئ، عضلي زرق مه ورکوئ، ځکه چې عضلي زرق د هغې د وخامت سبب کیږي.

### Tetanus

- ټپ یا زخم پاک کړئ. Benzylpenicillin ورکړئ. (او یا Procaine benzylpenicillin) او Anti-tetanus سیروم (او یا Immunoglobulin) ورکړئ. په Diazepam (یا Phenobarbital) ناروغ ارام او سپزمونه کنټرول کړئ.

## ■ عضلي- اسکليتي سيستم (Musculo-skeletal system)

Arthritis

**:Septic arthritis**

- زوه يا قيح دې تخليه شي.
- د Acute osteomyelitis په څير دې د ۴-۶ اوونيو پورې انټي بايوټيک ورکړل شي.

**Rheumatoid arthritis**

يوه Auto-immune ناروغي ده، ميکروبي علت نه لري.

☜ له همدې کبله هيڅکله Penicillin او نور Antibiotic مه تجويزوئ.

**Osteomyelitis**

**Acute osteomyelitis**

- زوه يا قيح دې تخليه شي.

هغه ماشومان چې عمر يې له ۵ کالو لږ دی:

- Cloxacillin او Ampicillin د ۴-۶ اوونيو پورې په لومړۍ اوونۍ کې Gentamicin هم ورسره يو ځای کړئ.

له ۵ کالو لوی ماشومان او لويان:

- Cloxacillin د ۴-۶ اوونيو پورې، په لومړۍ اوونۍ کې ورسره Gentamicin هم يو ځای کړئ.

د عمر د دواړو ډلو لپاره معاوضوي:

Benzylpenicillin او Chloramphenicol د ۴-۶ اوونيو لپاره (يا Benzylpenicillin او Cloxacillin).

**Chronic osteomyelitis**

غالباً د جراحۍ مکررو مداخلو ته اړه وي. د Antibiotic ارزش او نقش ډير محدود دی.

Antibiotics به د زولنو يا قيحي جيوبو په وچولو کې اغيزه و نه لري.

## + جلد (Skin)

**انتهرکس (Anthrax)**

- Benzylpencillin وريدي يا عضلي (يا Procain benzylpenicillin عضلي) د ۱۰ ورځو لپاره.

**Boils**

- Cloxacillin له ۵- ۱۰ ورځو پورې (يا Erythromycin).

**Cellulitis او Pyoderma**

- که وخيم نه وي: Pencillin V (او يا Procaine benzylpenicillin) د ۵-۱۰ ورځو پورې.
- که وخيم وي:
- له ۵ کالو کوچنيو ماشومانو کې:

- Ampicillin و Gentamicin وريدي يا عضلي د ۱۰ ورځو لپاره.
- له ۵ کالو لوی ماشومان او لويان:
- Benzylpenicillin وريدي يا عضلي او Cloxacillin (او يا Procaine benzylpenicillin عضلي او Cloxacillin) د ۱۰ ورځو لپاره.

## جلدي کالدانه (Cutaneous leishmaniasis):

- درملنه هميشه استطباب نه لري.
- په هغه صورت کې چې آفت Nodular وي، يا په دوه ناحيو کې وي. Meglumine antimoniate په مأوفه ناحيه کې د زرق په شکل (Intra-lesional) دې تطبيق شي.
- پر مخ يا نورو حياتي برخو ته نږدې د پراخه آفت د موجوديت په صورت کې او يا له دوو څخه د مأوفه نواحيو ډيروالی:
- Meglumine antimoniate عضلي د ۱۵ ورځو لپاره.

## فنګسي انتانات يا Fungal infection

## جلد (Body ringworm, Tinea corporis)

- Gentian violet د دريو اوونيو لپاره (يا Benzoic salicylic acid ointment او يا د Clotrimazole کريم).
- که ښه نه شي، او يا که د آفتونو شمير ډير وي: Griseofulvin د ۴-۸ اوونيو لپاره.

### راس (Scalp ringworm, Tinea capitis):

- Gentian violet او Griseofulvin د ۴-۱۲ اوونيو پورې ضرورت دی.

### Gas gangrene

- د ټپ څارنه او Benzylpenicillin وريدي يا عضلي (يا Metronidazole).

### Impetigo

- Gentian violet
- که پراخه وي Penicillin V د ۷ ورځو لپاره.
- که په ۲ ورځو کې ښه نه شو، او يا Bullae هم موجود وي Cloxacillin هم پر زيات کړئ.
- که له Penicillin سره حساسيت موجود وي، Erythromycin.

### سپږې يا Lice infestation

- Benzyl benzoate

### Lymphangitis

- Penicillin V د ۷ ورځو لپاره (يا Procaine Benzylpenicillin).

### Mastitis

- Cloxacillin د ۷ ورځو لپاره.
- که له Penicillin سره حساسيت موجود وي، Erythromycin.

### Scabies

- Benzyl benzoate

## + د سترګو انتانات (Eye infections)

Conjunctivitis

**Purulent conjunctivitis** (د منضمو زولن يا قيحي انتان)

- Tetracycline د سترګو مرحم (او يا Gentamicin د سترګو څاڅکي) د ۷ ورځو لپاره، يا د اعراضو له ښه کيدو نه دې ۲ ورځې وروسته هم استعمال شي.

**Newborn conjunctivitis** (د نوي زيږيدلي ماشوم د منضمو انتان چې له زيږيدلو څخه يې تر دوه اوونيو پورې را منځ ته شوی وي).

- وخيم، اکثر د ژوند په لومړيو ۴ اوونيو کې احتمالاً د Gonorrhoea له کبله وي.
- Benzylpenicillin عضلي، د ۳ ورځو لپاره او Gentamicin د سترګو څاڅکي هر ساعت په پيل کې.
- معمولاً خفيف وي او د ژوند له څلورمې ورځې وروسته پيل کيږي، احتمالاً د Chlamydia له کبله وي.
- Tetracycline د سترګو مرحم د ۱۰ ورځو لپاره او Erythromycin د خولې له لارې د ۱۴ ورځو لپاره.

**Trachoma** (تراخم/کوکره)

- Tetracycline مرحم د ورځې ۲ ځلې د ٦ اوونيو لپاره.

**Allergic conjunctivitis** (عادي)

☜ Antibiotic مه ورکوئ.

## + Septicaemia

☜ Ampicillin او Gentamicin وريدي(يا عضلي) د۱۰- ۱۴ ورځو پورې (يا Benzylpenicillin اوGentamicin ).

☜ که بطني محراق باندې شکمن ياست Metronidazole هم ورسره يو ځای کړئ.

## + وخيمه سوءتغذي (وخيم Marasmus او يا Kwashiorkor)

☜ د خوږو اصلاح له درملو څخه په کرتونو اغيزمنه ده!

- که اختلاط نه وي موجود، او د انتان ښاره نښې نه وي:

Co-trimoxazole د ۵ ورځو لپاره.

- که ماشوم ډېر ناروغه وي: Ampicillin او Gentamicin وريدي يا عضلي.

که تر ۴۸ ساعتو پورې ښه نه شو: Chloramphenicol وريدي يا عضلي.

## + ځانګګوي يا خاص انتانات (Specific infections)

**Brucellosis**

هغه ماشومان چې عمر يې له ۸ کالو لږ وي:

- Co-trimoxazole او Rifampicin د٦-۱۲ اوونيو لپاره (ياCo-trimoxazole + Streptomycin).

له ۸ کالو لوی ماشومان او لويان:

- Doxycycline د ٦-۱۲ اوونيو پورې او Streptomycin په لومړيو ۲۱ ورځو کې.

### خګوخګيکی Chickenpox

ويروسي انتان دی. تر څو چې بل انتان مداخله نه وي کړي، انټي بايوټيک مه ورکوئ.

### Diphteria

- Procaine benzy1penicillin عضلي د ۱۰ ورځو لپاره (اويا Penicillin V او Diphtheria anti-toxin.
- که له Penicillin سره حساسيت موجود وي، Erythromycin.

### جذام (Leprosy)

ناروغ دې د جذام ځانګړي پروګرام ته، د ناروغۍ د Stage د ټاکلو او سټنډرډ لارښود مطابق د څو قلمه درملنې (Multi-drug treatment) لپاره، ولیږل شي.

### ملاريا (Malaria)

غير اختلاطي ملاريا

- Chloroquine

وخيمه Falciparum ملاريا:

- Quinine د ۷ ورځو لپاره، او د هغې په تعقيب Fansidar (يا Quinine او Doxycycline د ۷ ورځو لپاره).

له Chloroquine سره مقاومه فلسيپاريوم ملاريا:

- (Fansidar) Sulfadoxine+Pyrimethamine

### شري يا Measles

هميشه په شري اخته ماشوم ته Vitamin A ورکړئ. Antibiotic يوازې هغه وخت استطباب لري چې دويمي باکتريايي انتان مداخله کړي وي (د مثال په ډول Otitis media يا Pneumonia).

### بغوټ (Mumps)

ويروسي پېښه ده. Antibiotic استطباب نه لري.

### نري رنځ (Tuberculosis)

د نري رنځ ضد درملو برخې ته دې مراجعه وشي. (۹٦ مخ)

### وچکۍ يا محرقه (Typhoid fever)

- Chloramphenicol فمي (يا Amoxicillin يا Co-trimoxazole) درملنې ته د تبې له وليدو څخه وروسته تر ۲ اوونيو دوام ورکړئ.

د ناروغۍ د راګرځيدو په صورت کې له عين انټي بايوټيک څخه بيا کار اخيستلی شئ.

- يوازې په هغو پېښو کې چې وچکۍ له څو ډوله درملو سره مقاومت ولري-"Multi-drug resistant typhoid fever" او Ciprofloxacin دې ورکړل شي. هيڅکله دې د لومړي غوره درمل په څير نه ورکول کيږي.

+ **په جراحي، جروحاتو او د حیواناتو په داړلو کې د انتاناتو څخه د مخنیوي لپاره:**

**جراحي:**

**بطني جراحي**

- Metronidazole ۳۰ دقیقې له Induction مخکې او Gentamicin د Induction په وخت کې (او یا Ampicillin وریدي یا عضلي).

**جروحات**

**سوزیدل یا Burns**

- د ټیټانوس مخنیوی یا وقایه.
- یوازې هغه وخت دې انټي بایوټیک استعمال شي، چې د دویمي انتان نښې موجودې وي او یا سوزیدنه ډیره وخیمه وي: Cloxacillin او Penicillin V (یا Procaine benzylpenicillin عضلي).
- په روتین ډول تیاکې مه پرانیزئ. مړه انساج (Necrotic) لرې کړئ.

**کسر ونه یا Fractures:**

**پرانستي کسرونه:**

- د Tetanus مخنیوی یا وقایه.
- Cloxacillin د درې ورځو لپاره.
- که په ټپ په خاورو ډیر ککړ وي: Gentamicin او Benzylpenicillin د درې ورځو لپاره.

**د ماینونو جرحې او فشاري (Crush) جرحې:**

- د Tetanus مخنیوی یا وقایه.
- Cloxacillin او Gentamicin او Metronidazole (او یا د روغتون د پالیسۍ مطابق).

**د حیواناتو یا ښاروېو داړل**

**سپي داړل (Dog bite)**

- د Tetanus مخنیوی یا وقایه.
- ټپ یا زخم په صابون او اوبو پرېمینځئ.
- Doxycycline (یا Erythromycin) د ۵ ورځو لپاره.
- د لیوني سپي واکسین (Rabies immunisation) که کوخه ډب او مشکوک سپی وي او یا د لیوني سپي امکان موجود وي.

**مارچیچل Snake bite:**

- د Tetanus مخنیوی یا وقایه.
- Procaine benzylpenicillin عضلي د ۵ ورځو لپاره.

## پ - د نري رنځ یا توبرکلوز (سل) ضد درملو معقول تجویز

☞ همیشه د نري رنځ مشکوک ناروغان د نري رنځ د مجادلې ملي پروګرامونو ته د تشخیص او درملنې لپاره واستوئ.

- په هغه صورت کې چې اعتمادي او ډاډمن پروګرام نه وي موجود، درملنه دې د منلی شوو او کره (معياري) طريقو له مخې چې لاندې ذکر کيږي، او د آفت د ډول او پراختيا پورې اړه پيدا کوي، اجرأ شي
- Rifampicin يوازې هغه وخت ورکړئ، چې تاسې ډاډه شئ چې ناروغ هغه اخيستلی شي. د نري رنځ ښه پروګرام هغه دی چې ناروغ د Rifampicin هر ډوز د کتنځي سټاف د څارنې لاندې وخوري. دا بريالی ميتود د (Direct Observed Therapy) DOT يا د مستقيمې څارنې لاندې درملنې په نامه ياديږي.

**ناروغ ته د هغه د درملنې مخکې وزن پر اساس چې پر کيلوګرام محاسبه کيږي د نري رنځ ضد درملو ورځنی ډوز، وليکئ. د درملو هغه مستحضرات چې څو ډوله درمل يې سره يو ځای کړي وي، که نوعيت يې ښه وي هم استعماليدلی شي.**

| له درملنې مخکې وزن | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| **Drug** | **له 5kg لږ** | **5-10 kg** | **11-20 kg** | **21-32 kg** | **33-50 kg** | **له 50 kg لوړ** |
| **Isoniazid** | 5mg/kg/ daily | 50 mg | 100 mg | 200 mg | 300 mg | 300 mg |
| **Rifampicin** | 10 mg/kg/ daily | 75 mg | 150 mg | 300 mg | 450 mg | 600 mg |
| **Pyrazinamide** | 25 mg/kg/ daily | 250 mg | 500 mg | 1000 mg | 1500 mg | 2000 mg |
| **Ethambutol** | په هغو ماشومانو کې چې عمر يې له ٦ کالو ټيټ وي مه يې استعمالوئ. | | | 800 mg | 800 mg | 1200 mg |
| **Streptomycin** | 15mg/kg/ daily | 250 mg | 500 mg | 500 mg | 750 mg | 1000 mg |
| **Thioactone** | 2.5mg/kg/ daily | 25 mg | 50 mg | 100 mg | 150 mg | 150 mg |

## د I ګروپ (۱ کټګوري) درملنه د نري رنځ د مثبتو خراشکو نوې پېښې او وخيم نري رنځ

## استطباب:

- د سږو د نري رنځ نوې پېښې چې د خراشکو سمير يې مثبت وي او د نري رنځ نور نوي تشخيص شوي ناروغان چې ډېر شديد ناروغه وي د نري رنځ د وخيمو ډولونو سره په شمول د: Miliary TB, (منتشر توبرکلوز)، TB meningitis ، Pericarditis، بطني توبرکلوز ( Peritonitis، معايي)،پراخه يا دوه طرفه Pleural effusion ، د هډوکو نری رنځ، د سږو نری رنځ چې د خراشکو سمير يې منفي وي، د سږو له پراخه تغيراتو سره، د بولي تناسلي سيستم نری رنځ.

## درملنه

| د ۸ میاشتو رژیم | | |
|---|---|---|
| I پړاو یا مرحله | لومړۍ ۲ میاشتې | هره ورځ: Pyrazinamide Isoniazid ,Rifampicin او Ethambutol (او یا Isoniazid ,Rifampicin, ,Pyrazinamide او Streptomycin) |
| II پړاو یا مرحله | له ۳ تر ۸ میاشتې | هره ورځ: Thioacetone + Isoniazid (او یا Ethambutol + Isoniazid) |

په هغه صورت کې چې درملنه دقیقاً مراقبت نه شي او یا کورنۍ غریبه وي، ممکن ۱۲ میاشتینی رژیم په ډیرو پېښو کې کامیاب وي:

| ۱۲ میاشتینی رژیم | | |
|---|---|---|
| I پړاو یا مرحله | لومړۍ ۲ میاشتې | هره ورځ Thioacetone + Isoniazid او Ethambutol (اویا Thioacetone + Isoniazid او Streptomycin) |
| II پړاو یا مرحله | له ۳ تر ۱۲ میاشتې | هره ورځ: Thioacetone + Isoniazid (او یا Isoniazid او Ethambutol ) |

**د II ګروپ (دویمې کټګورۍ) درملنه- د مثبتو خړاخکو نری رنځ: د نري رنځ بابیرې (Relapse) او هغوی چې درملنه یې نه ده بشپړه کړې (Defaulter).**

استطباب:

- دا درملنه یوازې د هغو ناروغانو لپاره ده چې خړاخکي یې مثبت ، او ناروغي یې له سمې درملنې او بشپړې درملنې وروسته بابیرې یا Relapse کړی وي او یا درملنه نه وي بشپړه شوي (د درملو له پرېښودلو یې له یوې میاشتې ډېر وخت شوی وي).

درملنه:

| د ۸ میاشتو رژیم | | |
|---|---|---|
| I پړاو یا مرحله | لومړۍ ۳ میاشتې | هره ورځ: Isoniazid, Rifampicin, Pyrazinamide, Ethambutol, همدا راز د لومړیو دوه میاشتو لپاره Streptomycin |
| II پړاو یا مرحله | له ۴مې تر ۸ مې میاشتې | هره ورځ Isoniazid ، Rifampicin او Ethambutol |

**د III ګروپ (دریمې کټګورۍ) درملنه- غیروخیم نری رنځ**

استطباب:

- د سږو سمیر منفي نری رنځ، چې د سږو پراخه ساحه نه وي مصاب او له سږو بهر نری رنځ پرته له هغوی چې په I ګروپ کې ذکر شوي. (د بلګې په ډول د عقداتو او جلد نری رنځ).

**درملنه:**

| د ۱۲ میاشتو رژیم | | |
|---|---|---|
| لومړی پړاو یا Phase | د لومړيو ۲ میاشتو لپاره | هره ورځ Thioacetone + Isoniazid او Ethambutol (او یا Thioacetone + Isoniazid او Streptomycin) |
| دویم پړاو یا Phase | له ۳ مې تر ۱۲مې میاشتې | هره ورځ Thioacetone او Isoniazid (یا Ethambutol + Isoniazid) |

## د نري رنځ په درملنه کې معمول اشتباهات:

**د نري رنځ په درملنه کې زياتې اشتباهګانې موجودې دي، چې د درملنې د غلطۍ، د ناروغۍ د بابېرې او د درملو په مقابل کې د مقاومت د رامنځ ته کيدو سبب کيږي.**

**دا اشتباهات په افغانستان کې د نري رنځ د وخيم او کړکيچن حالت د را منځ ته کيدو سبب کيږي:**

۱. ***غلطي:د درملنې پيل په هغه صورت کې چې تاسې په دې ډاډه نه یاست چې ناروغ به يې بشپړه کړي.*** **په داسې حالاتو کې له دې نه چې درملنه نيمګړې پاتې شي، ښه دا ده چې اصلاً درملنه پيل نه شي، ځکه چې د درملو په مقابل کې د مقاومت د رامنځ ته کيدو سبب کيدلی شي.**

☜ **د درملنې موده بايد لنډه نه شي، سره د دې که ناروغ د ښه والي احساس وکړي. د نري رنځ د باسيل ورو وده کوي، نو له همدې کبله ناروغي بابيرې يا Relapse کوي.**

۲. **غلطي: د درملو يوځايي استعمال (a drug combination)چې اوس نه توصيه کيږي یا حتی د نري رنځ ضد يو درمل توصيه.**

☜ **هميشه لکه د سټنډرډ درملنې لارښود درملنه تجويز کړئ.**

☜ **هيڅکله نرى رنځ يوازې د نري رنځ ضد يو درمل باندې مه تداوي کوئ. ځکه د نري رنځ باسيل په ډيرې چټکۍ د هغې په مقابل کې مقاومت پيدا کولای شي.**

۳. ***غلطي:د درملو د غلط Dosage استعمال:*** **د درملنې د ناکامۍ او د اړخيزو اغيزو د ډيروالي سبب کيدای شي.**

☜ **د درملو سم ډوزونه دې لکه څنګه چې مخکې ذکر شوي، محاسبه شي.**

۴. ***غلطي:*** ***د درملو ويشل په څو ورو ډوزونو په ورځ کې***

☜ **هميشه ټول درمل يو ځای، په يو وخت او يو ځل توصيه کړئ.**

۵. ***غلطي: د نري رنځ ضد درملو استعمال د نورو ناروغيو لپاره. د بېلګې په ډول*** **Streptomycin غالباً د غير مشخصو انتاناتو لپاره ورکول کيږي، حال دا چې يوازې بايد د نري رنځ او Brucellosis په پېښو کې تجويز شي.**

☜ **د نري رنځ درمل بايد يوازې د نري رنځ لپاره تجويز شي.**

## ت - معافیت یا Immunisations

## د معافیت جدولونه

لاندې د ښځو او ماشومانو لپاره د معافیت مهالویشونه د معافیت د کتلوي پروګرام یا EPI (Expanded Programme on Immunization) مطابق دي.

| د ماشومانو د معافیت جدول | |
|---|---|
| د زیږیدلو په وخت کې اویا هر څومره ژر وروسته له هغې | BCG* |
| د ٦ اوونیو په عمر | DPT* / Polio* 1 |
| د ۱۰ اوونیو په عمر | DPT*/ Polio 2 |
| د ۱۴ اوونیو په عمر | DPT*/ Polio 3 |
| د ۹ میاشتو په عمر | Measles*/Polio 4 |

*Polio: فمي محلول (ژوندي نري شوي) د Poliomyelitis واکسین*

*Measles: د شري واکسین*

*BCG: د نري رنځ پر ضد واکسین دي*

*DPT: د دیفتري، توري ټوخلې او تیټانوس واکسین.*

که ضرورت وي، کولی شئ د Diphtheria, Polio , BCG، توري ټوخلې او شري واکسین په یو وخت ورکړئ.

### د میرمنو لپاره د معافیت یا Immunisation مهال ویش

ټولې ښځې چې ۱۵-۴۵ په عمر وي (هغه ښځې چې د ماشوم د زیږیدلو قابلیت لري) باید د ټیټانوس پر ضد ورته د ټیټانوس واکسین * (Tetanus toxoid) ورکړل شي، تر څو یې د نوي زیږیدلي د ټیټانوس مخه ونیول شي. کله چې د لومړي ځل لپاره د حمل په وخت کې، حامله ښځه کتنځي ته د مشورې لپاره راځي، د لومړۍ دورې واکسین ورته وکړئ. که هغې مخکې د ټیټانوس د وقایې کورس نه وي بشپړ کړی، باید ۱-۲ میاشتې وروسته بیا واکسین شي، د هغې وروستۍ دوره یوه میاشت مخکې د لنګون له متوقعه وخت څخه ده.

بشپړ توصیه شوي مهال ویش کې دا واکسینشن شامل دي:

| | | |
|---|---|---|
| Tetanus 1 | TT I | په ۱۵ کلنۍ کې او یا په بل هر وخت کې تر ۴۵ کلنۍ پورې |
| Tetanus 2 | TT II | له Tetanus1 څخه ۴ اونۍ وروسته |
| Tetanus 3 | TT III | له Tetanus 2 څخه ٦ میاشتې وروسته |
| Tetanus 4 | TT IV | له Tetanus 3 څخه یو کال وروسته |
| Tetanus 5 | TT V | له Tetanus 4 څخه یو کال وروسته |

### *خطر ته د مواجه کیدو په وخت کې معافیت*

کوم ناروغان چې داسې کومه جرحه ولري چې د جلد د قطع کیدو سبب شوي وي (پرانستې خفیفې او لویې جرحې او داړل) دې ته اړه لري چې د ټیټانوس پر ضد وقایه شي. هغوی ته د Tetanus toxoid

يو يا څو ډوزونه ورکړئ، ځينې وخت د پخواني معافيت وضعيت او د جرحې متن کېدلو په نظر کې نيولو، Anti-tetanus Immunoglobulin (يا ATS) هم ورسره يو ځای کيږي.
کوم کسان چې نامعلومه سپي، ممکن ليوني سپي داړلي وي، د Rabies immunoglobulin معافيت ته اړه لري.

### *د واکسين د مضاد استطباباتو او له هغې څخه د بې ځايه ډار په هکله*

ډير خلک داسې فکر کوي چې د معافيت يا Immunisation لپاره څو مضاد استطبابات موجود دي. دا يو عام سؤتفاهم دی چې: (ناروغ ماشوم بايد واکسين نه شي) مثلاً سؤتغذي، د منځنۍ تبې موجوديت (د سانتي ګراد له ۳۹ درجو کمه) نسناستی او يا د تنفسي پاسنيو لارو انتان له تو‌خي سره. دا سمه خبره نه ده. په دويم پاراګراف کې هغه حالتونه شامل دي، په کومو کې چې په مصون ډول واکسين تطبيقدلای شي. په حقيقت کې يوازې څو محدود حالتونه چې په لاندې پاراګراف کې ذکر شوي، د واکسين تطبيق په کې مضاد استطباب دی.

### د معافيت يا Immunisation مضاد استطبابات

- **هغه ماشومانو چې د واکسينو په مقابل کې يې شديد عکس العمل (اړخيزې اغيزې) ښودلی وي، بايد د همهغه واکسين بل ډوز ورنکړل شي. شديد عکس العمل عبارت دی له:** Collapse يا شاک، بې تبې اختلاجات، Encephalitis ، Anaphylaxis (شديد Allergic عکس العمل) او شديد موضعي عکس العملونه.
- **هغه ماشومان چې په Immune deficiency ناروغيو اخته وي، او يا هغوی چې د ژغورنې (معافيتي) سيستم يې د ځينو درملو د استعمال له کبله ځپل شوی وي، مثلاً د Corticosteroid لوړ ډوزونه، بايد دوی ته ژوندي واکسين تطبيق نه شي. چې په دې ډله واکسينو کې د BCG، شيري او د Polio واکسين شامل دي. سؤتغذی د واکسينو د تطبيق لپاره مضاد استطباب نه، بلکې د واکسين د تطبيق لپاره يو بيړنی يا عاجل استطباب ګڼل کيږي.**
- **هغه ماشومان چې وخيمه حاده ناروغي ولري، مثلاً نمونيا،** Bacillary dysentery، Meningitis.

### تاسې کولی شئ، ماشومان سره د دې چې دا لاندې تکليفونه ولري، واکسين کړئ:

- هغه ماشومان چې د پاسنيو تنفسي لارو په انتان اخته او تبه يې له ۳۹ سانتي ګيرډ څخه ټيټه وي.
- هغه ماشومان چې په نسناستي اخته او تبه يې له ۳۹ سانتي ګيرډ څخه ټيټه وي.
- هغه ماشومان چې په سؤتغذي اخته وي، د وخيمې سؤتغذي په شمول.
- هغه ماشومان چې Allergy يا استما ولري .
- هغه ماشومان چې په Antibiotic تداوي کيږي.
- هغه ماشومان چې Eczema ولري او يا د جلد موضعي تکليف ولري.
- هغه ماشومان چې د زړه، سږو، ينې او پښتورګو ځنډنۍ ناروغۍ لري.
- هغه ماشومان چې بې مودې زيږيدلي دي (Premature) او يا يې د زيږيدلو وزن لږ وي (Low birth weight).
- هغه ماشومان چې چاړان يا اختلاجات ولري.
- هغه ماشومان چې د مور په پيو تغذيه کيږي.

# ۵- د درملو په مقابل کې Allergic عکس العملونه څنګه تداوي کړو؟

### خفيف او متوسط عکس العملونه

خفيف او متوسط عکس العملونه کيدای شي د جلدي اندفاعاتو (Erythema,Urticaria)، عمومي خارښتونو،Rhinitis (Runny nose), Angio-oedema , زړه بدوالي، کانګو او يا بطني دردونو يا Conjunctivitis په شکل تظاهر وکړي.

د خفيفو او متوسطو الرژيو درملنه:

- درمل قطع کړئ.
- انټي هيستامين (Chlorphenamine يا Promethazine) او يو Corticosteroid (لکه Prednisolone) د ۳-۵ ورځو لپاره.

### شديد الرژيک (Anaphylaxis) عکس العملونه:

شديد الرژيک عکس العملونه معمولاً د درملو له اخيستلو څو دقيقې وروسته منځ ته راځي. د خفيفو او متوسطو عکس العملونو د اعراضو برسيره، شديد عکس العملونه د خطر په يوې يا دوو لاندې نښو متصف دي:

۱- د تنفس مشکل (Breathing difficulty) چې کيدی شي د Laryngeal oedema او يا استما (د Bronchi سپزم) له کبله وي.

۲- Collapse يا د شعور د له منځه تلل، چې د وينې د فشار د ټيټيدول له کبله رامنځ ته کيږي.

**د شديدو الرژيکو عکس العملونو درملنه د تنفسي ستونزې يا Collapse سره:**

**ماشومان**

- Adrenaline عضلي.

که ضرورت وي وروسته له ۱۰ دقيقو دې تکرار شي.

له ۵ کالو کوچنيو ماشومانو ته Adrenaline 1:1000 امپول په 9 ml Sodium chloride 0.9 % او يا مقطر اوبو کې نري يا رقيق کړئ.

له يوې مياشتې تر يو کال ماشوم ته 0.05 mg = 0.5 ml نرى يا رقيق شوى محلول.

له ۱ تر ۲ کالو ماشوم ته 0.1 mg = 1 ml نرى يا رقيق شوى محلول.

له ۲ تر ۳ کالو ماشوم ته 0.2-0.4 mg = 2-4 ml نرى يا رقيق شوى محلول .

له ٦ تر ۱۲ کالو 0.5 mg = 0.5 ml د Adrenaline 1:1000 امپول څخه.

- Chlorphenamine

له ۱ تر ۵ کالو 2.5-5 mg تحت الجلدي، نه عضلي يا وريدي.

له ٦ تر ۱۲ کالو 5-10 mg عضلي

که Chlorphenamine نه وي په عوض يې Promethazine ورکړئ، د هغې د مقدار لپاره د درملو لست ته مراجعه وکړئ. (٥٦ مخ)

- Dexamethasone عضلي اويا وريدي (IM/IV)

که عمر يې له ٦ کالو لږ وي 2-4 mg

که عمر يې له ٦ کالو لوړ وي 4-8 mg

له ۱۲ کالو لوی 4-12 mg

که Dexamethasone نه وي په عوض يې Hydrocortisone ورکړئ، د هغې د مقدار لپاره د درملو لست ته مراجعه وکړئ. (۳۷ مخ)

**لويان:**

- Adrenaline عضلي 0.5mg (چې مساوي کيږي د 1: 1000 محلول له 0.5ml سره)

که ضرورت وي ۱۰ دقيقې وروسته يې تکرار کړئ.

- Chlorphenamine عضلي يا وريدي 10 mg(که نه وي په عوض يې Promethazine 50 mg وريدي يا عضلي) (٥٦ مخ)
- Dexamethasone عضلي يا وريدي 8 mg (که نه وي په عوض يې Hydrocortisone 200 mg وريدي يا عضلي) (۳۷ مخ)

Supportive درملنه:

که ضرورت وي: وريدي مايعات د Shock د درملنې لپاره يا Salbutamol يا Aminophylline د Bronchospasm (د قصباتو د تشنج) د درملنې لپاره.

# References

1. ACBAR Health Sub-committee. *Report of Working Group on Harmonization and Improving Drug Supply & Use by the Aid Community in Afghanistan*. Workshop held December 1996.
2. *Afghan National Drug Formulary*, Ministry of Public Health 1996.
3. *Alder Hey Book of Children's Doses*, 6th edition, Liverpool: Alder Hey's Children's Hospital 1994, with amendment 1996.
4. Barza M, Ioannidis JPA, Cappelleri JC, Lau J. Single or multiple daily doses of aminoglycosides: a meta-analysis. *British Medical Journal* 1996; 312: 338-345.
5. Bunjes R, *Rational Drug Use*. 2nd edition, Werne: Sanavita health care 1995.
6. *British National Formulary* Number 31 (March 1996), London: British Medical Association and Royal Pharmaceutical Society of Great Britain 1996.
7. *British National Formulary* Number 35 (March 1998), London: British Medical Association and Royal Pharmaceutical Society of Great Britain 1998.
8. Clements J. Opportunities to immunise. *Child Health Dialogue* 1996; 2: 3-4.
9. Cook GC. *Manson's Tropical Diseases*. 20th edition, London: W.B.Saunders Company 1996.
10. *Essential drugs - Practical guidelines*, Medecins Sans Frontieres (MSF), Paris: Hatier 1993.
11. *Essential Drugs Monitor*, No 10, Geneva: WHO 1995.
12. Ewan PW. ABC of allergies - Anaphylaxis. *British Medical Journal* 1998; 316: 1442-1445.
13. Gadomski A. Misuse of antibiotics to treat the common cold. *ARI News* 1993/94; 27: 7.
14. Gove S. Remedies for young children. *ARI News* 1990; 18: 2-3.
15. International Union Against Tuberculosis and Lung Disease. *Tuberculosis Guide for Low Income Countries*. 4th edition. Paris: IUATLD 1996.
16. Luxemburger C. Managing Malaria. *Child Health Dialogue* 1997; 6: 7-8.
17. *Management of the Sick Newborn*. Report of a Technical Working Group. WHO/FRH/MSM/96.12. Geneva: WHO 1996.
18. von Massow F, Ndele JK, Korte R. *Guidelines to rational drug use.* London: Macmillan 1997.
19. Rubin P (ed.). *Prescribing in Pregnancy*. 2nd edition. London: BMJ Publishing Group 1995.
20. Sanders RKM. The management of tetanus 1996. *Tropical doctor* 1996; 26: 107–115.
21. Sommer A. *Vitamin A deficiency and its consequences*. 3rd edition. Geneva: WHO 1995.
22. Stanfield P. *Child Health*. 2nd edition. Nairobi: African Medical and Research Foundation 1997.
23. Tamburlini G. Fast action saves lives. *Child Health Dialogue* 1996; 2/3: 3-4.

UNICEF promotes the use of Wheat Salt Solution (WSS) for home treatment of diarrhoea. Salamati 1995; 3, 4-8 (in Dari).

Victorian Medical Postgraduate Foundation Inc. (VMPF), Therapeutics Committee: *Antibiotic Guidelines.* 7th edition.Victoria (Australia): VMPF Inc. 1994.

24. World Health Organisation. WHO/ARI/90.10. *Antibiotics in the treatment of acute respiratory infections in young children*.Geneva: WHO 1990.
25. World Health Organization. *The treatment of diarrhoea - a manual for physicians and other senior health workers*. Geneva:WHO 1993.
26. World Health Organisation. *Treatment of Tuberculosis - Guidelines for National Programmes*, Geneva: WHO 1993.
27. World Health Organisation. *The Use of Essential Drugs* - Seventh report of the WHO Expert Committee (including the revised Model List of Essential Drugs), WHO Technical Report Series 867, Geneva: WHO 1995.
28. World Health Organisation*. The management of acute respiratory infections in children - practical guidelines for outpatient care*. Geneva: WHO 1995.
29. World Health Organization. *Charts for Integrated Management of Childhood Illness*. Geneva: WHO (ca. 1996).
30. World Health Organization. *Model List of Essential Drugs - Tenth Version 1997*. Geneva: WHO 1997.
31. Wyatt HV. Unnecessary injections and poliomyelitis in Pakistan. *Tropical Doctor* 1996; 26:179-180.

